

حرکت انقلاب اسلامی افغانستان

# ټولټاکنې

## د شریعت په رڼا کې



تالیف : مولوي خلیل الله فیروزي زرمتي





## د دې رسالې ځانګړتیاوې


| | |
|---|---|
| د رسالې نوم: | تولټاکنې د شریعت په رڼا کې |
| مؤلف: | مولوي خلیل الله فیروزي |
| کمپوز او سمون: | محمد صادق صدیقي |
| بیاځلی کتنه: | د علماو د همغږۍ کمېټې پلاوی |
| اهتمام: | مولوي قلم الدین د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان امیر |
| خپروونکی: | د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان ګوند |
| د چاپ شمېر: | ۲۰۰۰ دوه زره ټوکه |
| د چاپ ګڼه: | لومړی ځل |
| د چاپ کال: | ۱۳۹۸ لمریز / ۲۰۱۹ زېږدیز |
| تمویل کوونکی: | د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان ګوند |
| د ترلاسه کولو ځای: | کابل څلورمه کارته لوړو زده‌کړو وزارت ته مخامخ د حرکت انقلاب اسلامي افغانستان مرکزي دفتر |



: kart-e-char /kabul /Afghanistan.
: www.hiia.af
: cultural@hiia.af
: ۰۲۰۲۵۱۱۹۷۶

## لړ لیک

## سریزه

په نړۍ کې داسې وګړي شته چې له خپل چارۍ او شهوت غوښتنې څخه خالي نۀ دي، او دغه شهوت غوښتنې او خپل چاریتوب د ټولو بدیو بیخ او د فتنو اصلي رګ دی چې عقلا او شرعا د هغۀ بندول اړین دي. د انسان وژنې او وینې تویونې، غلا او لارې وهنې، چور او چپاول او داسې نورې کومې ناامنۍ چې راپېښېږي لامل یې همدا خپل غرضي او شهوت غوښتنه ده. نو لۀ همدې امله اړتیا پیدا شوه چې د دغو مفاسدو او بدمرغیو د بندولو لپاره یو ټولنیز ځواک وي چې د هیواد وګړي لۀ هر اړخیز ظلم او زیاتي څخه خوندي کړای شي او د پاچاهۍ په دننه کې لۀ ظالم څخه مظلوم ته خپل حق ورکړای شي او د هېڅ زورواکي دا قدرت نۀ وي چې هغه کوم کمزوری کس کېکاږي او د خلکو ارامي او امنیت له ګواښ سره مخ کړي. د دغسې اشخاصو د مخنیوي لپاره باید یو ټلنیز ځواک شتون ولري چې د هیواد کورنیو او بهرنیو فسادونو او نا امنیو مخ ډب کړي، د دغه ټولنیز ځواک نوم حکومت او سلطنت دی.

ولسونه له پاچا او امیر پرته داسې دي لکه د سیند کبان، چې لوی کبان یې کوچني کبان تر ستونې لاندې تېرولای شي او د حال یې کومه پوښتنه هم نۀ شي کېدلای. د پاچا مثال د یوې ډیوې دی چې په کوم کور کې روښانه وي او بیلابیل خلک د دغې ډیوې په رڼا کې خپل کارونه ترسره کوي، او که په یوځل دغه ډیوه مړه شوه او تیارۀ خپره شوه نو د دې کور دننه او بهر چې څومره ماران لړمان او نور ژوي چې په خپلو غارونو کې پټ شوي وي دباندې راوځي او خلک لۀ خطر سره مخ کوي. دې ته ورته که پاچا شتون ونۀ لري نو د ټولو غلو چپاول ګرو او خیانتګرو مخه خلاصېږي، بیا چې څۀ کیږي هغه به کیږي. الله مو دې ترې وساتي.

آمین

## د امام یا پاچا د درولو اړتیا

لکه څرنګه چې د امام ټاکل په نصوصو او اجماع ثابت دي دې ته ورته عقلا هم ثابت دي. څومره چې خلک د قدرت او حکومت په ذریعه حق ته غاړه ږدي، د قرآن د تبلیغ په ذریعه یې نه ږدي، چې دا مطلب په لاندې آیت کریمه کې ثابت دی، الله تعالی فرمایي: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾ الحديد : ۲۵.[1]

ژباړه : (مونږ خپل پیغمبران له روښانه څرګندو نښانو او لارښوونو سره ولیږل؛ او له هغو سره مو کتاب او تله نازل کړل، تر څو خلک پر عدل ولاړ وي. او اوسپنه مو راکوزه کړه چې په هغې کې ډېر زور دی).

په دې خبره کې اختلاف دی چې د امام ټاکل واجب دي او که نه؟ او وجوب یې په کومه طریقه دی؟

جاحظ، کعبي، ابو الحسین او اسماعیله په دې آند دي چې د امام ټاکل پر مونږ واجب نه، بلکې په الله تعالی واجب دي.

اهل سنت وایي چې د امام ټاکل د شریعت له مخې واجب دي.

معتزله او زیدیه ډله وایي چې د امام ټاکل د عقل له مخې واجب دي.[2]

**د اهل سنتو ځینې دلائل دا دي :**

امت مسلمه د رسول الله ﷺ له وفات څخه وروسته ډېر اړین کارونه ترسره کړي؛ چې لومړی یې امام ټاکل و، آن دا چې د رسول الله ﷺ تر ښخولو یې هم وړاندې کړ.

دویم دا چې رسول الله ﷺ فرمایي : (څوک چې ومړ او د خپلې زمانې له امام څخه خبر نهٔ و، نو دی په جاهلیت کې مړ دی).

---

[1] . اضواء البیان: ۱ ټوک ۱۲۱ مخ
[2] . شرح المواقف : ۸ ټوک ۳۴۵ مخ

دربیم دا چې ابو بکر ﷺ په خپل مشهوره خطبه کې چې د رسول الله ﷺ د وفات پر مهال یې ورکړه داسې ویلي ؛ (باخبره ووسئ ! محمد ﷺ وفات شو، او دغه دین یو ځوک غواړي چې خدمت یې وکړي).

صحابه کرامو ټولو دا خبره ومنله او هېچا داسې ونه ویل چې زمونږ. ورته اړتیا نشته، بلکې ټول په یوه خولهٔ شول.[1]

څلورم دا چې زیات شمېر شرعي واجبات تر امام پورې تړلي وي لکه وړاندې چې ورته اشاره هم وشوه. **(والمسلمون لابد لهم من امام يقوم بتنفيذ أحكامهم وسد ثغورهم وتجهيز جيوشهم وأخذ صدقاتهم وقهر المتغلبة والمتصلصة وقطاع الطريق واقامة الجمع والأعياد وقطع المنازعات، الخ)**

یعنې د مسلمانانو له امام څخه خلاصون نشته هغه احکام پلي کړي، پولې وساتي، د لښکرو اکمالات وکړي، پوځ په جنګي وسایلو سنبال کړي، د خلکو زکاتونه او صدقات راټول کړي، سرکشه خلک، غلهٔ او قطاع الطریق وځپي او مغلوب یې کړي، د جُمعو او اخترونو لمونځونه ادا کړي، د خلکو ترمنځ د شخړو او جنجالونو فیصلې وکړي، د حقونو په باب کې د شاهدانو ګواهي قبوله کړي، کوم ماشومان چې اولیاء او خپلوان نه لري د هغو د نکاح پړه پر غاړه واخلي، د غنیمتونو وېش وکړي، او دې ته ورته هغه کارونه چې عام خلک یې نه شي کولی هغه تر سره کړي.[2]

د محمد بن عوف بن سفيان الطائي په روایت کې راځي؛ ( **الفتنة إذا لم يكن إمام يقوم بأمر الناس** ) یعنې فتنه هغه وخت ده چې په خلکو کې امام شتون ونهٔ لري.

له عمر ﷺ څخه روایت دی هغه مبارک فرمایي : ( **لا إسلام إلا بجماعة ولا جماعة إلا بالأمارة ولا أمارة إلا بالطاعة** ) یعنې د اسلام زور او قوت له اتفاق پرته نه راځي، او اتفاق پرته له امارت څخه نهٔ راځي، او امارت پرته له اطاعت څخه ( چې په روا کارونو کې وي ) نهٔ قوي کېږي.

---

[1] . شرح المواقف : ۸ ټوک ۳۴۶ مخ

[2] . النبراس : ۵۱۳ مخ

په دې خبره هم پوهېدل اړین دي چې د امامت مسئله په اصل کې د علم کلام له موضوع څخه نه، بلکې د فقهاو له موضوع څخه ده. خو د کلام علماء ځکه له امامت څخه بحث کوي چې روافضو دا مسئله له اصولو څخه شمېرلې ده. او که دا لامل نه وای؛ نو بیا خو دوی له فروعو څخه بحث نهٔ کاوهٔ. او زمونږ په وړاندې د امامت مسئله له اصولو څخه نهٔ ده، کله چې د کلام علماو ترې بحث وکړ؛ نو په همدې اعتبار سره دا مسئله فقهاو دوی ته پرېښوده.[1]

**په دین کې د سیاست ځای او مرتبه**

په سر کې غواړو په اسلامي او شرعي سیاست باندې یو څو کرښې ولیکو، نو ښه به دا وي چې لومړی یې په اصولو باندې په لنډه توګه خبرې وکړو:

له نصرانیانو څخه دا خبره مشهوره ده چې دوی د دین او سیاست تر منځ توپیر کوي، د دین په خلاف د دوی یو مشهور شعار دی چې (د پاچا کارونه پاچا ته پرېږدئ او د الله کارونه الله ته) یعنې دین له سیاست، او سیاست له دین سره هېڅ اړیکه نهٔ لري. دغې باطلې نظریې په دې وروستیو وختونو کې د (العلمانیه او سکولرزم) په نامه شهرت پیدا کړی، چې دین یې د ژوند له ټولو اړخونو څخه اېستلی دی.

دغه نظریه په حقیقت کې یو ډول شرک دی، په داسې حال کې چې دین ته په مادي ژوند کې په هېڅ ډول اړیکې قایل نهٔ دي. دین یوازې په څو رسمونو او عباداتو پورې بند بولي چې انسان یې یوازې په ګوښه او عبادت ځای کې ترسره کوي، نو په دې توګه الله جل جلاله یوازې په عباداتو کې الله دی، او د دنیاوي چارو لپاره کوم بل خدای دی (الله مو دې له داسې عقیدې څخه وساتي).

له همدې کبله د اسلامي دین راسخو عالمانو د دغې نظریې په هر ځای او هر وخت کې سخت مخالفت کړی دی. ځکه چې د دې نظریې په اسلام کې هېڅ ځای نشته، اسلام د توحید په عقیده باندې په بشپړه توګه ولاړ دین دی او د ژوند په ټولو چارو کې په الهي احکام باندې روان دین دی چې په دې الهي احکامو کې سیاست او اقتصاد دواړه په بشپړه توګه داخل دي. نو د اسلامي

[1] . فیض الباري : ۴ ټوک ۴۹۸ مخ

دين په عالمانو لازمه ده چې د دغې نظريې په سخته توګه مخالفت وکړي، او کوي يې الحمد لله.

البته د اسلام ځينو عالمانو په دې لړ کې له څۀ افراط څخه کار اخستی دی چې سياست او حکومت يې نږدې د اسلامي دين اصلي موخه او مقصد ګرځولی دی او عبادات يې د دې کار لپاره وسيله ګرځولي ده. دا ډول نظريات او عقايد هم غلط دي، ځکه چې په اسلام کې د مسلمانانو لپاره لوړه موخه عبادت دی، او سياست يا حکومت د هغه لپاره وسيله ده. له دې نظريې څخه دوه لويې تېروتنې منځ ته راځي:

لومړۍ : هر کله چې عبادات د الهي حکومت د تأسيس وسيله وګرځي، بيا دوی بالذات مقصود نه دي. نو که يو څوک دا وسايل پرېږدي او په نورو وسايلو حکومت لاسته راوړي نو بيا به يې کوم مانع مخه ونۀ نيسي، ځکه چې عبادات خو مقصود نه دي.

دويم: دا چې دخلکو له وسايلو سره يوه عادي اړيکه ده هغه هم داړتيا پر مهال، چې په همدې بنا يې يوه موقته انتقالي مرحله بولي او د ژوند پايله يې نۀ بولي.

خلاصه دا چې ځينو عالمانو دومره تمرکز پرې کړی چې دوی ټول دين او اسلام سياست ګرځولی په بدل د دې کې چې سياست دين وګرځوي. خو حق دا دی چې سياست د دين يوه برخه ده نه ټول دين. سياست له دين سره داسې اړيکه لري لکه تجارت يې چې له دين سره لري، نو لکه څنګه چې تجارت او اقتصاد د مسلمانانو لپاره اصلي او اساسی موخه نۀ ده بلکې د مادي ژوند لپاره يوه وسيله ده، همدا راز سياست هم د دين د ترلاسه کولو او معنوي ژوند لپاره يوه وسيله ده، نه دين.[1]

**په اسلام کې حکومتي نظام**

د شرعي سياست احکامو ته په کتو سره دا روښانه کېږي چې په قرآن او حديث کې د حکومت د جوړولو کوم ځانګړی شکل نۀ دی تر سترګو شوی، او نه يې په دې اړوند کومه ځانګړې لاره ټاکلې ده. خو اړينه خبره دا ده چې په حکومتي نظام کې د هغه اصولو رعايت په هر وخت او هر ځای کې وشي

[1] . دا مسئله د فتح الملهم په ۹ ټوک ۲۲۶ مخ کې په بشپړه توګه وګورئ.

کوم چې شريعت ټاکلي دي، د حکومت جزئيات او تفاصيل که په هر شکل کې وي خو چې له قرآن او حديث سره او د خلفاء راشدينو له اصولو سره مخالف نه وي کوم باک نه لري. هغه اصول چې شريعت وضع کړي او ټاکلي په لنډه توگه يې دلته بيانوو. وَاللهُ ﷻ هُوَ الْمُوَفِّق.

### ۱ ــ حکم به په هر څۀ کې د الله تعالی وي

د اسلام د سياسي احکامو له اصولو څخه لومړی اصل دا دی چې په اسلامي نظام کې حقيقي حاکم الله تعالی دی، هېڅ حاکم او حکومت نشي کولی چې د قرآن مخالف قانون جوړ کړي. دا هغه اصل دی چې د اسلام سياسي نظام له ټولو دموکراسي او دکتاتوري نظامونو څخه جلا کوي. ځکه چې دموکراسي نظام پرته له کوم قيد او شرط څخه د قانون د جوړولو واک خلکو ته سپاري او دکتاتوري نظام د حکم ټول واک هغه حاکم او پاچا ته سپاري چې په خپلو احکامو کې د کوم بل قدرت تر واک لاندې نه وي. خو د دې په خلاف په اسلامي نظام کې به هرومرو د حاکم حکم او حکومت د قرآن او حديث تابع وي، تر دې چې که په گناه امر وکړي اطاعت يې په خلکو واجب نۀ دی.

### ۲ ــ د امام ټاکل د اهل حل وعقد شورا ته سپارل شوي

د امام ټاکنه به اهل حل وعقد کوي. خلافت نه وراثت دی لکه په امپراطوري نظام کې، او نه د عسکرو په زور کېدای شي لکه په دکتاتوري نظام کې، او نه خو ناپوهانو ته سپارل کېدای شي لکه په دموکراسي نظام کې. بلکې دا کار به اهل علم او اهل خِبره کوي او په اجتماع او شورا د مسلمانانو سره به کېږی. حضرت عمر ﷺ فرمايي : "چا چې له مسلمانانو سره د مشورې پرته له چا سره بيعت وکړ نو دا بيعت يې د اعتبار وړ نه دی، نږدې ده چې تابع او متبوع دواړه ووژل شي".[1]

او دا يې هم ويلي دي چې : "زه په دې پوهېږم چې خلک وايي د ابوبکر ﷺ خلافت ناڅاپه و، ناڅاپه و خو الله تعالی دی (ابوبکر ﷺ) له شر څخه وژغورۀ، خو خلافت پرته له مشورې نۀ شي کېدای".[2]

---

[1] . اخرجه البخاري في رجم الحبلی من الزنا.
[2] . اخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه : ۱۴ ټوک ۵۶۳ مخ

**۳ ــ دا لازمي ده چې امام به عادل وي:** يعنې چې حاكم او خليفه به د اهليت په صفاتو باندې موصوف وي چې هغه اووه (۷) صفتونه دي:

لومړی يې دا دی چې امام بايد عادل وي.

دويم دا دی چې علم به لري چې په نويو پېښو باندې په خپله وپوهېږي.

درېيم دا دی چې حواس به يې روغ وي لکه؛ غوږونه، سترګې او ژبه، ترڅو هغه هرڅهٔ وپېژني چې په دې حواسو پېژندل کېږي.

څلورم دا دی چې اندامونه به يې روغ وي ترڅو پر خپل مټ حرکت او کړای شي او ښکته او پورته کېدل وکولای شي.

پنځم دا دی چې امام به خاوند د رأي وي ترڅو د ولس د سياسي چارو او د مصالحو تدبير او سمون وکولای شي.

شپږم دا دی چې شجاعت او زړورتيا به لري ترڅو حدود او پولې وساتي او له دښمن سره جهاد وکولای شي.

اووم دا دی چې د نسب خاوند به وي لکه قريشي. خو دا شرط اختلافي دی.

نن سبا په ډېرو جمهوريتونو کې دغه اوصاف نه موندل کېږي، نو په دغه نظامونو کې د فاسقو او يا د جاهلانو په ټاکنه کې کوم مانع شتون نهٔ لري. او په اسلام کې په اهل حل وعقد باندې د داسې يو کس ټاکل واجب دي چې دغه شرطونه په کې پوره وموندل شي.[۱]

**پاچاهي مسؤليت دی حق نهٔ دی**

د شرعي سياست له اصولو څخه يو دا دی چې حکم او امر يو مسؤليت دی، داسې حق نهٔ دی چې د دې د پرمټ به څوک د دنيا ګټې ترلاسه کول غواړي، بلکې دا دحاكم په لاس کې يو خطرناک امانت، او د دهٔ تر غاړي يو لوی عهد دی. الله ﷻ فرمايي : ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا ﴾ النساء ۵۸.

ژباړه: (ای مؤمنانو! الله تعالی تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ).

---

[۱] . فتح الملهم شرح صحيح المسلم : ۹ ټوک ۲۲۸مخ.

رسول الله ﷺ ابو ذر ؓ ته وفرمايل : **" يا أبا ذر إنك ضعيف وإنها أمانة وإنها يوم القيامة خزي وندامة إلا من أخذها بحقها وأدى الذي عليه فيها ".**[1]

ژباړه : (اى ابو ذره ! ته كمزورى يې او دا يو امانت دى، او دا د قيامت په ورځ يو رسوايي او پښېماني ده. مګر هغه به پښېمانه نۀ وي چې د امارت په حقوقو يې عمل كړى وي او پۀ دې پورې تړلي واجبات چې پر دۀ دي هغه يې ادا كړي وي).

**څوک چې پۀ خپله د امارت غوښتنه وكړي هغۀ ته بايد ونۀ سپارل شي**

عبد الرحمن بن سمره ؓ فرمايي : ماته رسول الله ﷺ وفرمايل : " اى عبد الرحمانه ! د امارت غوښتنه مۀ كوه ځكه چې كه تاته امارت ستا په غوښتنه دركړل شي، د هغۀ د ترسره كولو مسؤليت او عهده ستا پر غاړه اوړي، او كه ستا له غوښتنې پرته دروسپارل شي، د دې په ترسره كولو كې له تا سره د الله تعالى له لورې مرسته كيږي".

دې ته ورته امام مسلم د ابو موسى ؓ په روايت حديث راوړى هغه مبارک فرمايي : له ماسره دوه سړي رسول الله ﷺ ته لاړل او د امارت غوښتنه يې وكړه، رسول الله ﷺ ځواب وركړ چې "مونږ هغه چاته كار نه سپارو چې په خپله يې وغواړي". اوس نو زمونږ د وخت نوماندان او د دوى حرص وګوره او د رسول الله ﷺ وينا وګوره.

**شورا او د سلا مشورې وجوب**

په امام واجبه ده چې په هغه چارو كې چې د هغې په اړوند په نصوصو كې څه نۀ وي ويل شوي له اهل حل وعقد سره سلا مشوره وكړي، او دا سلا مشوره كول د الله تعالى د امر په بنا واجبه ده، الله تعالى فرمايي: (وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِ) آل عمران : ۱۵۹.

ژباړه: (او د دين په چارو كې هغوى ته هم په مشوره كې برخه وركړه).

[1] . صحيح مسلم : ۳ ټوک ۱۴۵۷ مخ

فقهاء كرامو ويلي : كوم امير چې سلا مشوره پرېږدي، هغه د عزل مستحق دی. ابن عطيه ﷬ فرمايي : (سلا مشورې د شريعت له قواعدو، او له لويو احكامو څخه دي. او څوک چې له عالمانو او ديندارو سره سلا مشورې نه كوي عزل يې واجب دی، او په دې خبره کې اختلاف هم نشته). دا خبره ابو حيان ﷬ په بحر محيط کې په ۳ ټوک ۹۹ مخ کې رانقل كړې ده.

اوس راځو دې خبرې ته چې آيا شورا كاشفه ده او كه ملزمه؟ يعنې چې كله د امام او شورا نظريې سره مختلفې شوې، نو په دې صورت کې به څهٔ كيږي؟ آيا د شورا پرېكړه په امام واجبه ده او كه نه؟ په دې مسئله کې اختلاف دی، ځينې عالمان وايي چې شورا كاشفه ده ملزمه نهٔ ده ځكه چې الله تعالى فرمايي: ﴿فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ﴾ آل عمران : ۱۵۹.

ژباړه : (نو بيا چې ستا اراده په كوم شي ټينګه شي؛ نو پر الله توكل وكړه).

او ځينې علماو اكثريت ته اعتبار وركړی. خو د فتح الملهم مصنف وايي: هغه څهٔ چې د رسول الله ﷺ له سيرت او د خلفاء راشدينو څخه د شورا په اړوند روښانه دي هغه دادي؛ چې امام په سلا مشوره کې ملزم نه دی، يوازې مشوره كول پرې لازمه ده چې د مسئلې ټول اړخونه روښانه شي، بيا چې دی د مشورې هر اړخ غوره كوي د دليل د قوت پرمټ به وي نه په اساس د اكثريت.

د خلفاء راشدينو په زمانه کې دا كار په همدې توګه چلېدهٔ، له همدې امله ابوبكر صديق ﷛ د جيش اسامه د چمتوالي پر مهال، او همدا راز د زكات له منكرينو سره په جهاد كولو کې په خپله رايه او نظريه عمل وكړ، سره له دې چې د اكثريتو رايه د دهٔ مبارک په خلاف وه.

په دې خبره کې دا راز دی چې كله يو امير په ټولو شرطونو او صفتونو د امارت باندې سنبال وي نو د الله تعالى له لورې ورسره مرسته كيږي، نو د دهٔ رايې ته په نورو رايو باندې ترجيح وركوله كيږي، او چې كله رايې سره مختلفې شي نو د يوې لورې ترجيح ته خو بيا خامخا اړتيا وي.

دا هغه امام دی چې د امارت او امامت د ټولو شرايطو او صفاتو مستجمع وي او د رايې له ضعف او خيانت څخه خالي وي. كه دا ډول امام نهٔ پيدا كيږي،

بیا که دستور او قانون ورته جوړ کړای شي او امام پرې مکلف کړای شي نو په مهمو چارو کې به دی د اهل شورا د اکثریت تابعداري کوي.[1]

## ټولټاکني یا انتخابات د اسلام له مخې

پوښتنه : آیا ښځې ته د شریعت له مخې روا دي چې نومانده شي او یا چا ته رایه ورکړي؟

ځواب : د ښځو په اړوند خو ډېر آیتونه او حدیثونه راغلي چې دوی دې په کور کې کېني، الله تعالی فرمایي : ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ الأحزاب : ۳۳.

**ژباړه :** ( او په خپلو کورنو کې مېشتې اوسئ).

نو د دې نصوصو په بنا ښځو ته د شورا غړيتوب یا په ټولټاکنو کې دربېدل کتاب حرام بللي. ښځې د فطرت او خلقت له لحاظه او هم د عقل او دین له لحاظه کمزورې مخلوق دی د دې ستر مسؤلیت وس نه لري، باید دا کار ونهٔ کړي. د دوی تښتول کېدل او یرغمل کېدل د دې خبرې شاهد دی چې په دوی کې د سړیو برابر کمالات نشته، البته په عامو ښځو کې.

د هوښیارانو او حکیمانو نصیحت دی چې له هغه چا سره مشوره مهٔ کوي چې له ښځو سره زیاته ناسته پاسته لري.[2]

## اهل حل وعقد څوک دي؟

اهل حل وعقد علماء کرام، مجتهدین، د قوم مشران او غوره خلک دي چې د دوی په رایه به امام ټاکل کېږي، دوی د مسلمان ولس د استازو حیثیت لري.

امام ماوردي رحمه الله وایي: که څوک نهٔ وهٔ چې امامت وکړي، نو له خلکو څخه دې دوه ډلې وټاکل شي چې یوه یې د مسلمان ولس لپاره یو امام خوښ کړي، او دویمه ډله به اهل امامت وي چې له هغو څخه یو امام شي. نو د امامت د مسئلې مسؤلیت دې دواړو ډلو ته ور ترغاړه شو، که په امامت کې کوم ځنډ راغی نو په ولس به کومه ګناه نهٔ وي.

[1]. دا بیان په لنډه توګه له فتح الملهم : ۹ ټوک ۲۳۰ مخ څخه راوړل شو.
[2]. دستور الاسلام : ۹۶ مخ – د مولانا محمد ادریس کاندهلوي ﷫ تصنیف.

**د اهل حل وعقد شرطونه**

د امام ماوردي له نظره اهل حل وعقد درې شرطونه لري :

لومړی یې بشپړ عدالت دی؛ عدالت هغه قوه ده چې خپل خاوند دې ته اړ کوي چې تقوا او میرانه په ځان لازمه کړي. مراد له تقوا څخه دا ده چې د شریعت ځومره حکمونه دي هغه ادا کړي او له ممنوعاتو (نارواو) څخه یې ځان وساتي.

دویم یې علم دی؛ او علم ځکه شرط دی چې د امارت مستحق په هغه صفاتو او شرطونو سره وپېژني کوم چې په امیر کې باید وي.

دریم یې رایه او حکمت دی؛ تر څو دوی هغه څوک د امارت لپاره غوره کړي چې هغه د امت لپاره ډېر په خیر وي، او د چارو د سمون بنه وړتیا ولري.[1]

**آیا د امام په ټاکلو کې د اهل حل وعقد او اهل علمو اکثریت ته اعتبار شته؟**

د امام په ټاکنه کې دا اړینه ده چې د اهل حل وعقد د شورا د اکثریت پلوي به ورسره وي.[2]

که د اهل حل وعقد شورا د امام یا وکیل ټاکنه ونهٔ کړي، بیا د لاندې حدیث مفهوم څوک نهٔ شي عملي کولای :

عبد الله بن عباس ﵄ فرمایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي: " که چا داسې شخص وټاکهٔ چې په هغه قوم یا ټولي کې له هغهٔ پرته بل داسې څوک وه چې لهٔ هغهٔ څخه الله تعالی راضي و (یعنې د دهٔ په پرتله نېک شخص و)، او دی پوهېدهٔ هم، (یعنې نېک سړی یې پېژندهٔ) او هغه یې پرېښود، (یعنې له دې بنهٔ سړي پرته یې بل څوک وټاکه)، نو دې ټاکونکي لهٔ الله تعالی او د هغهٔ رسول ﷺ او د مسلمان ولس سره خیانت وکړ".[3]

---

[1] . الفقه الاسلامي وأدلته : ۶ ټوک ۶۸۵ مخ

[2] . فیض الباري : ۴ ټوک ۵۹ مخ

[3] . الطبراني

**د امام د ټاکنې غوره لارې**

په ازالة الخفاء کې په دې اړه داسې ویل شوي:

**مسئله در طرق انعقاد خلافت:** انعقاد خلافت بچهار طریق واقع شود.

**طریق اول:** بیعت اهل حل و عقد است از علماء و قضات و امرا و وجوه ناس که حضور ایشان متیسّر شود واتفاق اهل حل وعقد جمیع بلاد اسلام شرط نیست؛ زیرا که آن ممتنع است و بیعت یك دو کس فائده ندارد زیرا حضرت عمر رضی الله عنه در خطبه آخر خود فرموده اند "فَمَن بَايعَ رجلا علي غير مشورةٍ من المسلمينَ فلا يُبَايَعُ هو والذي بايعه تَغِرَّةً أَن يُقتَلاَ".[1] و انعقاد خلافت حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه بطریق بیعت بوده است.

**طریق دوم :** استخلاف خلیفه است. یعنی خلیفه عادل به مقتضای نصح مسلمین شخصي را از میان مستجمعین شروط خلافت اختیار کند و جمع نماید مردمان را و نص کند باستخلاف وی و وصیت نماید باتباع وی پس این شخص میان سائر مستجمعین شروط خصوصیتی پیدا کند وقوم را لازم است که همان را خلیفه سازند و انعقاد خلافت حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه بهمین طریق بود.

**طریق سوم:** شورای است به این صورت که خلیفه شائع گرداند خلافت را در میان جمعی از مستجمعین شروط وگوید از میان این جماعه هر کرا اختیار کنند خلیفه او باشد، پس بعد موت خلیفه تشاور کنند ویکی را معین سازند واگر برای اختیار شخصی را یا جمعی را معین کند اختیار همان شخص یا همان جمع معتبر باشد وانعقاد خلافت ذی النورین رضي الله عنه بهمین طریق بود که حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه خلافت را درمیان شش نفر شائع ساختند وآخرها عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه برای تعیین خلیفه مقرر شد وایشان حضرت ذي النورین را اختیار نمود.

**طریق چهارم:** استیلاء است، چون خلیفه بمیرد وشخصی متصدی خلافت گردد بغیر بیعت واستخلاف وهمه را بر خود جمع سازد بایتلاف قلوب یا بقهر

[1] . صحیح البخاري : ٨ ټوک ٢١٠ مخ

ونصب قتال خليفه شود ولازم گردد بر مردمان اتباع فرمان او در آنچه موافق شرع باشد و این دو نوع است:

یکی آنکه مستولی (شخصی که بر خلافت استیلاء پیدا کرده) مستجمع شروط باشد وصرف منازعین کند بصلح وتدبیر از غیر ارتکاب محرمی واین قسم جائز است ورخصت. وانعقاد خلافت معاویه بن ابي سفيان ﵁ بعد حضرت مرتضی ﵁ وبعد صلح امام حسن ﵁ بهمین نوع بود.

دیگر آنکه مستجمع شروط نباشد و صرف منازعین کند بقتال و ارتکاب محرم و آن جائز نیست و فاعل آن عاصی است لیکن واجب است قبول احکام او چون موافق شرع باشد، و اگر عمال او اخذ زکات کنند از ارباب اموال ساقط شود چون قاضی او حکم نماید نافذ گردد حکم او، و همراه او جهاد می توان کرد و این انعقاد بنابر ضرورت است؛ زیرا که در عزل او افنای نفوس مسلمین و ظهور هرج و مرج شدید لازم می آید و بیقین معلوم نیست که این شدائد مفضی شود بصلاح یا نه؟ یحتمل (احتمال دارد) که دیگری بدتر از اول غالب شود پس ارتکاب فتن که قبح او متیقن به است چرا باید کرد برای مصلحتی که موهوم است ومحتمل! و انعقاد خلافت عبدالملك ابن مروان و اول خلفای بنی عباس بهمین نوع بود.

بالجمله اگر شخصی متفرد باشد در زمان خود بشروط خلافت یا جمعی هستند متصف بشروط خلافت و این شخص افضل همه است منعقد نشود خلافت او بغیر یکی از طرق مذکوره زیرا که بصفتی که وی دارد بدون تسلط یا بیعت خلاف منقطع نشود و فتنه ساکن نگردد؛ لهذا جماعه از صحابه بعد انتقال آنحضرت صلی الله وعلیه وسلم برفیق اعلی مبادرت کردند به بیعت حضرت صدیق ﵁ و اکتفا نه نمودند بر افضلیت او.

و اهل علم تکلّم کرده اند در آنکه خلافت حضرت مرتضی ﵁ بکدام طریق از طرق مذکوره واقع شد؟

به مقتضای کلام اکثر آنست که به بیعت مهاجرین و انصار که در مدینه حاضر بودند خلیفه شدند و اکثر نامه های حضرت مرتضی که بأهل شام نوشته اند شاهد این معنی است.

و جمعی گفته اند که بشورا انعقاد خلافت ایشان شد زیرا که مشوره استقرار یافت بر آنکه خلیفه عثمان ﷺ باشد یا علي ﷺ چون عثمان نماند علي متعین شد.[1]

**د شریعت په پلي کولو کې د امت استخلاف**

د فقه اسلامي مصنف وایي : خلک د الله تعالی له لورې د الهي احکامو په تبلیغ، تقریر او پلي کولو کې وکیلان دي، او د احکامو د مدلولاتو فهم او پوهه د سلطې او اجتهاد له لارې څخه ده. او دا د خلکو توکیل د احکامو په رسولو کې د الله تعالی لهٔ دې قول څخه څرګندیږي: ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَـٰٓئِكَةِ إِنِّى جَاعِلٌ فِى ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ البقرة : ۳۰

ژباړه : هغه وخت په زړه کړه چې کله ستا رب فرښتو ته ویلي وؤ چې " زه په ځمکه کښې د یو خلیفه پیدا کوونکی یم ".

نو کله چې نص قرآني په داسې توګه راغلی وي چې په استخلاف د ځینې رسولانو او انبیاو علیهم السلام دلالت کوي، نو له دوی څخه وروسته نور انسانان هم د ځمکې خلفاء دي، لکه څرنګه چې الله تعالی فرمایي : ﴿إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ﴾ الأعراف : ٦٩

ژباړه : ستاسې رب د نوح ؑ له قوم نه وروسته تاسې د هغه په ځای کښېنولئ.

﴿ثُمَّ جَعَلْنَـٰكُمْ خَلَـٰٓئِفَ فِى ٱلْأَرْضِ مِنۢ بَعْدِهِمْ لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ۝١٤﴾ یونس : ١٤.

ژباړه : اوس له هغو نه وروسته مونږ تاسې ته په ځمکه کښې د هغوی ځای درکړیدی، تر څو وګورو چې تاسې څنګه عمل کوئ.

﴿وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَكُمْ خَلَـٰٓئِفَ ٱلْأَرْضِ﴾ الأنعام : ١٦٥

ژباړه : الله تعالی هماغه ذات دی چې هغهٔ تاسې د ځمکې خلیفه ګان وګرځولئ.

---

[1] . ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء : ج١/ ص۶

پهٔ خلیفه او وکیل کې خو بل څهٔ نشته مګر دا چې دی د هغه چا امرونه اجرا کړي چې دی ځینې وکیل او یا ځای ناستی دی، الله ﷻ فرمایي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ﴾ النساء : ۵۸

ژباړه : مسلمانانو ! الله تعالی تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ، او کله چې د خلکو په مینځ کښې فیصله کوئ نو په عدالت سره یې وکړئ.

پهٔ بل آیت مبارک کې فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾ النساء : ۵۹

ژباړه : ای مؤمنانو ! د الله ، رسول او هغو کسانو اطاعت وکړئ چې له تاسې څخه د امر خاوندان وي.

دغه وروستي آیت د اسلامي شریعت هغه ټول مصادر رانغښتي چې هغه له یوې چینې څخه اوبهٔ کېږي چې هغه الهي وحې ده. هغه مصادر په دې ډول دي:

لومړی قرآن کریم دی؛ چې د دې د احکامو پلي کول د الله ﷻ په اطاعت کې راځي.

دویم سنت نبوي ﷺ دی؛ چې دا د هغه څهٔ بیانونکی دی چې د الله تعالی لهٔ لورې راغلي، پهٔ دې باندې عمل کول د رسول الله ﷺ په اطاعت کې راځي.

درېیم اجتهاد یا د فکر د خاوندانو اجماع ده، او دا هغه ځانګړي خلک دي چې د عامو خلکو په دیني او دنیوي چارو پوهېږي، چې هغه؛ حاکمان، امیران، علماء، د لښکرو رئیسان او په سیاسي، ټولنیزو او اقتصادي (صناعت، زراعت، او په نورو فني) چارو کې پوهان دي.

او اجماع هم هغه د اعتبار وړ ده چې د شریعت او یا د مصلحت پر بنسټ وي، چې د عام امت د ارادې تمثیل وکړای شي. پهٔ ځانګړې توګه که مونږه د امام غزالي رحمه الله قول غوره کړو چې اجماع د تر علماو پورې نهٔ محدوده وي

بلکې عوام هم له علماو سره ګډوي ترڅو ترې اجماع جوړه شي. نو دغه اجتهادونه او اجماع ګانې هم د اسلامي شریعت په مصادرو کې بلل شوي دي.[1]

**په عهد او استخلاف (په وصیت) سره امام ټاکل**

ولایة العهد دا دی چې حاکم یا پاچا لهٔ یو معلوم شخص سره په هغهٔ کې د ځانګړو صفاتو د شتون لهٔ امله ژمنه وکړي چې د دهٔ لهٔ مرګ څخه وروسته به خلیفه وي، مهمه نهٔ ده چې دا خلیفه نیږدې وي لکه یزید بن عبد الملک، او یا نیږدې نهٔ وي لکه عمر بن عبد العزیز.

د فقهاء کرامو رایه دا ده چې د امام ټاکنه د ژمنې او وصیت له لارې روا ده. خو چې په ولي عهد کې د خلافت شرطونه پوره شتون ولري، او له دهٔ سره د ولس بیعت په تمامه معنی وشي، نو دا بیعت د پخواني خلیفه د وړاندوینې او پیشنهاد پر ځای دی.

او الماوري په احکام السلطانیه کې ویلي چې د ژمنې او وصیت له لارې امامت او پاچاهي د پخواني امام له لورې په روا والي باندې اجماع راغلې ده او صحت یې اتفاقي دی. د دوه لاملونو له کبله مسلمانانو په دې کار باندې عمل کړی او هېڅ بد نهٔ دی بللی؛

یو دا چې ابو بکر ﷛ د عمر ﷛ په هکله عهد او وصیت وکړ، او مسلمانانو دا ژمنه او وصیت ثابت وګرځاوهٔ او قبول یې کړ.

دویم دا چې عمر ﷛ عهد او وصیت اهل شورا ته وکړ، نو د مسلمانو یې ډلې دا وصیت قبول کړ او په دې شورا کې داخل شول، چې دا د هغه وخت عمده خلک وو، او په دې وصیت او عهد باندې یې د صحت باور درلود.

او دا خو یوه اړینه خبره ده چې د خلافت شرطونه باید پهٔ ولي عهد کې شتون ولري، لکه چې دی به امین وي، پرهیزګار به وي، ثقه به وي، مخلص به وي او د مسلمانانو لپاره به خیر خواه وي.

---

[1] . لهٔ "فقه اسلامي و أدلته" څخه په لنډه توګه : ۸ ټوک ۶۱۳۵ مخ.

الماوردي په احکام السلطانيه کې په ۹ مخ کې وايي : که امام پۀ خلافت سره هغه چا ته وصيت وکړي چې په هغه کې د خلافت صفات شتون لري، دا عهد صحيح دی خو د ولي عهد تر منلو پورې موقوف دی.

او د امامت شرطونه په هغه وخت کې د اعتبار وړ دي چې دۀ ته کله وصيت وشي، نو که ولي عهد کوچنی او يا فاسق وي نو بيا يې خلافت نه صحيح کېږي، تر هغې چې اهل اختيار (هغه حاکم چې دۀ ته يې د خلافت وصيت کړی) خپل وصيت او ژمنه له سره وکړي. او دغه وصيت او ژمنه له دواړو پېښو څخه (کومه چې د ابو بکر ﷺ ټاکنه وه عمر ﷺ لره، او د عمر ﷺ ټاکنه وه اهل شورا لره)، ډېر ښۀ څرګندېږي، نو په يقيني ډول سره د ټاکلو او انتخاب معيار، د ولس چارې او مصلحتونه په نظر کې نيول وو او پوره والی د شرطونو وو په هغه چا کې چې هغۀ ته عهد سپارل کېدۀ.

او پۀ ولي عهد باندې د ولس رضامندي او خوښي هم يو اساسي کار دی، او دا د بصرې د يو شمېر علماو رايه هم ده چې، د ولي عهد د مسؤليت او واکمني په خلکو باندې په دې شرط لازمېږي چې له ولس څخه هغه خلک چې د واک او اختيار څښتن دي د ولي عهد په بيعت باندې راضي شي، ځکه چې دا هغه حق دی چې ولس پورې تړلی، او تر هغې پرې نۀ لازمېږي چې ترکومې پرې د ولس اهل اختيار راضي نه وي.

الماوردي د ولي عهد بيعت د خلکو د رضا او خوښې پرته هم د منلو وړ بللی، خو مونږ ورسره په دې خبره کې متفق نه يو؛ ځکه چې د عمر ﷺ بيعت د صحابه کرامو تر خوښۍ پورې محدود نۀ وۀ، لامل يې دا وۀ چې امام يا اهل شورا د خلکو د اختيار پر ځای وۀ، چې د دوی رضا د ولس د رضا په معنی وه، نو د عمر او عثمان ﷺ بيعت د ولس په خوښۍ او موافقې سرته رسېدلی.

له دې تېر بيان څخه دا څرګنده شوه چې امامت ميراثي نۀ دی، ټول فقهاء کرام په دې متفق دي چې هغه امامت چې په ميراث يوړل شي صحت نه لري.

ابن خلدون وايي: که په عهد او وصيت سره يې د خپلو زامنو لپاره د ميراث ساتنه وي، نو دا بيا د دين له مقاصدو څخه نه ګڼل کېږي، ځکه چې دا (امامت) خو د الله تعالی لۀ لورې يو امر دی چې له خپلو بندګانو څخه يې چا ته وغواړي ورکوي يې، پکار ده چې په دې اړه چې څومره ممکن وي ښه نيت ولري، د

دې وېرې له کبله چې د دين په داسې مهمو پوستونو باندې منلډې ونهٔ وهل شي.

او ابن حزم وايي چې د مسلمانانو تر منځ په دې کې اختلاف نشته چې په خلافت کې ميراث نه دی روا.[1]

**د حاکم او امام حقونه**

الطاعة في غير معصية. النصرة ما لم يتغير حاله.

حق الطاعة: إذا بايع أكثرية المسلمين إماماً وجبت طاعته من الكل، لقول الرسول ﷺ: " ويد الله تعالى مع الجماعة، من شذ شذ إلى النار".[2]

"من فارق الجماعة شبراً، فقد خلع ربقة الإسلام من عنقه ".[3]

لومړی حق يې دا دی چې لهٔ ګناه او معصيت پرته به ولس د حاکم د امر منونکي وي.

دويم حق يې دا دی چې تر کومې يې دغه (اسلامي) حالت بدلون نهٔ وي کړی تر هغې به ورسره مرسته کوي.

کله چې د يو هيواد د ولس زياته برخه په يو امام يا حاکم باندې راټول شول، په ټولو باندې د دې امام اطاعت واجب دی. دليل يې د رسول الله ﷺ دا حديثونه دي :

" د الله تعالی مرسته له لوی ټولي او جماعت سره وي، څوک چې له دې لويې (اسلامي) ډلې څخه ځان ګوښه کړي نو دوزخ به يې ځای وي ".

" څوک چې له دې لويې ډلې څخه د يو لوېښت پهٔ اندازه جلا شي نو د اسلام حلقه يې له غاړې وتلې ده ". [4]

---

[1] . الفقه الإسلامي وأدلته : ٨ ټوک ٦١٦٦ مخ.
[2] . كنز العمال في سنن الأقوال والأفعال: ١٢ ټوک ١٥٦ مخ – مؤسسة الرسالة
[3] . سنن أبى داود: ۴ ټوک ٣٨٥مخ – دار الكتب العربية - بيروت
[4] . الفقه الاسلامي وأدلته

**ځرنګه چې دا رساله د ټاکنو په اړه ده، نو د ښځې او فاسق په ټاکنه بحث اړین دی**

د امام چې کوم شرطونه دي په هغو کې ځيني اتفاقي دي ، ځيني يې اختلافي، ځيني يې ضروري دي او ځيني يې د غوره والي شرطونه دي.

اتفاقي شرطونه يې لکه ؛ مسلمان ، ازاد ، نارينه، عاقل او بالغ به وي.

اختلافي يې لکه ؛ قريشي به وي او مجتهد به وي.

د غوره والي شرطونه يې لکه؛ عدالت، د اندامونو روغوالی، پوهه او زوړرتيا به لري.

په پورته اتفاقي او ضروي شرطونو کې يو شرط د نارينتوب دی، يعنې د پاچا او امير لپاره دا هم شرط دی چې هغه به نر وي ښځه به نهٔ وي، له دې امله چې ښځې ناقصات العقل والدين دي، د ښځو عقل د نارينهو نيمايي دی، همدا لامل دی چې د دوو ښځو شاهدي د يو نارينه د شهادت سره برابر ده.

او د دين نقصان خو يې روښانه دی چې ښځينه د ناروغۍ په شپو او ورځو کې لمونځ او روژه او د قرآن شريف تلاوت نه شي کولای.

بله وجه يې دا ده چې بې زړه توب، ناز او نزاکت د ښځې ځانګړې نښې دي، او د حکومت د پاچاهۍ لپاره زړهورتيا او باتوري لازم شرط دی او بلکې د پاچاهۍ د ولس مشر لپاره دا اړين دي چې د زړهورتيا مرکز، د کامل همت او پوخ عزم سمبول وي.

ښځه خو د شهوت مرکز دی او د دوی بې پردهګې د فتنې لامل دی، په ښځه کې د حکومت کولو صلاحيت هېڅ نشته، او د جګړې په ډګر کې د ښځې شتون هم هېڅ دی، د پردې له امله ښځه په غونډو او ناستو کې د خاضرېدلو وړ نهٔ ده، او مدعي او مدعی عليه ته هېڅ کتلی نهٔ شي او نه خپله د دوی ويل او اورېدل کولی شي او نه هم د کوم بې وزله په فرياد رسېدلی شي او نه کوم تېری کوونکی له لاسه رانيولی شي او نه هغه وهلی شي، او که د پردې تر شا د چا وينا واوري هغه د ډاډ وړ نهٔ ده.

په بخاري شريف کې حديث مبارک دی چې کله رسول الله ﷺ دا واورېدل چې د فارس خلکو د کسری پاچا لور خپله ولس مشره جوړه کړې ده، نو دهٔ ﷺ وفرمايل : " **لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمُ امْرَأَةً** ".[1]

ژباړه: هغه قوم به هېڅ کله هم بريالي او برلاسي نهٔ شي چې د خپلې پاچاهۍ واګې د يوې ښځې په لاس کې ورکړي.

امام قرطبي ﷫ حديث شريف راوړي او فرمايلي يې دي : (قال القاضي أبو بكر بن العربي هذا نص في المرأة لاتكون خليفة ولا خلاف فيه).[2]

قاضي ابو بکر بن عربي ﷫ فرمايلي چې دا حديث په دې باندې ښکاره دليل دی چې ښځه پاچا او اميره نهٔ شي کېدلی او په دې کې د هېڅ اختلاف نشته.

فقهاء کرامو پاچاهي او امارت ته امامت کبری يا لوی امامت ويلی دی، او د لمانځه امامت ته يې امامت صغری يا کوچنی امامت ويلی دی، او دا څرګندوٌنه يې کړې ده چې هرکله په ښځه کې د کوچني امامت اهليت نشته، نو بيا څنګه کېدلی شي چې د لوی امامت اهل دې جوړه شي. د ښځې لپاره اذان او اقامت کول او خطبه ويل هم حرام دي خو لهٔ دې څخه د ښځې غږېدل او تقرير کول په لوړه کچه حرام دي. آن دا چې ښځې ته له ضرورت پرته له کور څخه وتل هم حرام دي، الله تعالی فرمايي : ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ الأحزاب : ۳۳.

**ژباړه** : (او په خپلو کورنو کې مېشتې اوسئ).

په رد المحتار کې وايي: **نغمة المرأة عورة، فلا يحسن أن يسمعها لرجل، وفي الكافي: ولا تلبي جهرا، لأن صوتها عورة**.[3]

**ژباړه:** د ښځې نغمه عورت دی، يعنې د ستر شی دی، نو سړي ته دې نه آوروي، او تلبيه دې په لوړ غږ نه وايي، ځکه چې دا عورت دی.

---

[1] . صحيح البخاري: ۱ټوک ۱۴مخ
[2] . تفسير قرطبي : ۱۳ ټوک ۱۸۳ مخ
[3] . رد المحتار – كتاب الصلاة – باب شروط الصلاة : ۱ ټوک ۴۰۶ مخ

الله تعالى فرمايي : ﴿ وَقُل لِّلْمُؤْمِنَٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَٰرِهِنَّ ﴾ النور : ٣١

**ژباړه:** (ای پیغمبره ﷺ **!**) مؤمنو ښځو ته ووایه: چې خپلې سترګې (نارینه و ته له کتلو څخه) ټيټې وساتي.

علامه ابن کثیر رحمه الله د ذکر شوي آيت په تفسير کې فرمايي: **أي: عما حَرَّم الله عليهن من النظر إلى غير أزواجهن. ولهذا ذهب كثير من العلماء إلى أنه: لا يجوز للمرأة أن تنظر إلى الأجانب بشهوة ولا بغير شهوة أصلا.**[1]

**ژباړه:** يعني له هغه شي څخه دې سترګې ټيټې کړي چې هغو ته نظر او کتل حرام دي، لکه: هغه چا ته چې د دوی مېړونه نهٔ وي او دوی ورته ګوري. له همدې کبله د ډېرو علماء کرامو په وړاندې دا ناروا ده چې: کومه ښځه پردي سړي ته په شهوت يا پرته له شهوت څخه وګوري. د فقهې په معتبر کتاب کې فرمايي: **ويكره حضورهن الجماعة، ولو لجمعة وعيد ووعظ، مطلقا على المذهب المفتى به لفساد الزمان.**[2]

**ژباړه:** د جماعت لمانځهٔ ته يا د جمعې او اختر لمانځهٔ ته او يا وعظ او نصيحت ته په مطلق ډول د ښځو راتلل مکروه دي، د زمانې فساد ته په کتلو سره په همدې مذهب باندې فتوی ورکړل شوې ده.

په حديث مبارک کې راغلي: **عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسَاجِدَ كَمَا مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ قُلْتُ لِعَمْرَةَ أَوَمُنِعْنَ قَالَتْ نَعَمْ.**[3]

**ژباړه:** عايشه رضي الله عنها فرمايي: د ښځو دا حرکات چې دوی اوس اختيار کړي که رسول الله ﷺ کتلای وای ، نو دوی به يې له مساجدو څخه منع کړې وی، لکه څنګه چې د بني اسرائيلو ښځې منع کړی شوې وې. راوي فرمايي چې ما لهٔ

---

[1] . تفسير ابن كثير-ط دار طيبة: ۶ ټوک ۴۴ مخ

[2] . الدر المختار: كتاب الصلاة باب الإمامة: ۱ ټوک ۵۶۶ مخ. كفاية المفتي: ۵ټوک ۳۵۶ مخ

[3] . (صحيح البخاري - دار الشعب القاهرة ۱۹۸۷: ۱ ټوک ۲۱۹ مخ)

عَمرَه ﵂ ښځه پوښتنه وکړه چې د بني اسرائيلو ښځې منع کړی شوې وې؟ هغې وويل: هو، هغوی منع شوې وې.

له دې حديث ځخه په ښکار توګه معلومه ده چې د صحابه کرامو په زمانه کې د ښځو له کور ځخه وتل يا مسجد ته د جمعې لمانځه لپاره ورتګ فتنه وه، له همدې کبله حضرت عمر، عايشې او نور صحابه کرامو ﵃ ټولو ښځې مسجد ته له ورتګ ځخه منع کولې.[1]

**وقال العلماء كان هذا في زمنه وأما اليوم فلا تخرج الشابة ذات الهيئة ولهذا قالت عائشة رضي الله تعالى عنها لو رأى رسول الله ما أحدث النساء بعده لمنعهن المساجد كما منعت نساء بني إسرائيل قلت هذا الكلام من عائشة بعد زمن يسير جدا بعد النبي وأما اليوم فنعوذ بالله من ذلك فلا يرخص في خروجهن مطلقا للعيد وغيره.**[2]

**ژباړه:** علماء کرامو فرمايلي: د اخترونو لمانځه ته د ښځو ورتګ د رسول الله ﷺ په زمانه کې له دې امله روا وۀ چې په هغه زمانه کې خير او برکت وۀ، او د فتنې وېره نۀ وه. او نن ورځ ځوانې ښځې د خپلې ښايست او ښکلا له کبله په فتنه کې د ښکيل کېدو له وېرو نه شي وتلای، له همدې امله عايشه ﵂ فرمايي: که چېرته رسول الله ﷺ دا اوسني کارونه د ښځو ليدلای وای نو دوی به يې د مسجد له ورتګ ځخه منع کړای وای، لکه ځنګه چې د بني اسرائيلو ښځې منع کړی شوې وې. (علامه عيني ﵀ فرمايي) زه وايم: د عايشې ﵂ دغه فرماينه د رسول الله ﷺ له زمانې ځخه ډېره لږه وروسته وه، او نن ورځ خو نو په الله ﷻ پنا غواړو، نو ښځو لره مطلقا په اختر او غير اختر کې د وتلو اجازه نۀ شي ورکول کېدلای.

نن ورځ چې ځوانې ښځې پرته له محرم ځخه دُبی، امريکا او يا حج او عمرې ته ځي په داسې حال کې چې حج پرې فرض نۀ دی دا نو له شريعت ځخه يوه مطلقه سرکشي ده. استغفر الله

---

[1] . كفاية المفتي: ۵ ټوک ۳۵۷ مخ په حواله د صحيح البخاري: ۱ ټوک ۱۲۰ مخ.

[2] . كفاية المفتي: ۵ ټوک ۳۵۷ مخ. په حواله د عمدة القاري: ۶ ټوک ۲۹۶ مخ. طبع سعيد

د ښځې کار دخپل خاوند خدمت او یا دهغهٔ دماشومانو زېږؤنه او دهغو روزنه او پالنه ده، ځکه چې ښځې دنارینه‌و کرهنې او کښتونه دي او اولادونه د دوی پیداوار او حاصلات دي. الله ﷻ فرمایي: ﴿نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٌ لَّكُمۡ﴾ البقرة: ۲۲۳.

**ژباړه :** ( ستاسې ښځې ستاسې کښتونه دي).

له دې امله د ښځې پاچاهي، امارت ، ولس مشري او وزارت، د ولس جرګې غړیتوب ټول ناروا او حرام دي. کوم خلک چې د ښځې د صدارت او وزارت د روا والي ویونکي دي دوی دې دا ځواب ووایي چې ښځه به د امېدوارۍ یا د زېږون په ورځو کې، او یا د نفاس په حالت کې د ولس مشرۍ او وزارت پړې، کارونه او ضروریات د کار په دفتر کې د حاضرېدلو په حالت کې ادا کوي او که به یې په زېږنتون کې احکام صادروي او پرېکړې کوي؟ تر اخره.[1]

پاتې شوه د سبا د ملکې قصه نو هغه د کافرانو عمل و چې هغه مهال حکومت د میراث په ډول چلېدهٔ ، چې په هغه ډول حکومت کې تې رودونکې ماشومان هم پاچاهان کېږي. نو په دې باندې د ماشوم او د ښځې د پاچاهۍ استدلال سم او صحیح نهٔ دی. امام الوسي رحمه الله فرمایي : (ولیس في الآیة ما یدل علی جواز أن تکون المرأة ملکة ولا حجة في عمل قوم کفرة علی مثل هذا المطلب).[2]

یعنې په دې آیت کې چې د ښځې پاچا کېدل په کې یاد شوي هغه څهٔ نشته چې پهٔ دې دلالت وکړي چې ښځه دې پاچا کړی شي. او د کافر قوم عمل او کړنو کې د داسې مطلب په ثابت والي دلیل نشي نیول کېدی. (دا ټول له دستور الاسلام څخه راخستل شوی)

**د مساوات او برابرۍ د مسئلې څېړنه**

دا د اشتراکیت یو اصل دی چې د مملکت ټول خلک په اعتبار کې سره برابر دي، هېڅ یو کس ته پر خپل دویم هم جنس باندې هېڅ ډول امتیاز نشته، په ښکاره سره د مساوات توری ډېر ښه خوږ معلومېږي کله چې اورېدل کېږي چې په فلانکي ځای کې یا د فلانکي په نظر کې امیر او غریب پاچا او ګدا

[1] . دستور الاسلام : ۳۳ مخ
[2] . روح المعاني : ۱۹ ټوک ۱۹۱ مخ.

ټول سره برابر دي هېڅا ته پر بل باندې پورته والی او امتياز نشته، يا دا وويل شي چې زمری او بيزه ټول پر يوه ګودر باندې اوبه سره څښي، نو د دې زړه وړونکې نارې په اورېدلو سره د اورېدونکي زړه له خوښۍ څخه ډکيږي او پوهيږي چې له دې څخه پورته د نړۍ د امن او امان څوک ضامن کېدلای شي؟

د يوه جنس ټول افراد په هر اعتبار سره برابر کېدل او هېڅ يوه فرد ته پر خپل بل هم جنس باندې هېڅ ډول امتياز نه لرل عقلاً محال او ناممکن دی. د عقل له مخې دا څرنګه امکان لري چې د يوه جنس ټول افراد دې په هر اعتبار سره مساوي او برابر وي او هېڅ ډول امتياز دې ترمنځ ونه لري؟ د هوښيار او ناپوه، روغ او ناروغ د مساوات هېڅوک هم قائل نه دي، اسونه او خرۀ به څرنګه سره برابر شي ټول خره هم سره برابر او يو ډول نه دي، او همدا ډول دا د مساوات ناره دروغژنه ناره ده چې تر کاغذه پورې محدوده ده، تر ننه پورې د نړۍ په هېڅ يوه ګوښه او کونج کې پرې عمل نه دی شوی، او نه هم کېدلای شي، آن دا چې خپله په اشتراکي حکومت کې چې له لينين او ستالن سره ځانګړې معامله وشوه، هغه نړۍ وليدله، آيا هغه ځانګړې او امتيازي معامله د مساوات د دې اصولو څخه خلاف نه وه؟ او د دې رد او ځواب نه دی؟

الله تعالی فرمايي: ﴿كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا﴾ الكهف : ٥

ژباړه: ستره خبره ده چې د دوی له خولې څخه راووځي، هغوی محضې دروغ وايي.

روسي ژوند ته لاړ شه ويې ګوره د ټولو د ژوند معيار يې يو شان نه دی، نو بيا د دې معاشي مساوات د دروغژنې نارې څۀ ګټه ده؟ يوازې د معاشي مساوات په نارې سره د مملکت معاشي ستونزې نه حل کيږي، له دې امله په کوم مملکت کې چې دا دروغژن غږونه پورته کيږي همالته ورباندې هېڅ عمل نه دی شوی.

**د شریعت پرېکړه**

د مساوات او برابرۍ په مسئله کې د شریعت پرېکړه دا ده چې په نړۍ کې د هرې نوعې او هر جنس افراد خامخا په ځینو شیانو کې سره ګډ او ځینو نورو کې سره جلا او متمایز دي، که چېرته په افرادو کې هېڅ شی هم سره ګډ نه وي نو جنسي یو والی نه پاتې کېږي او که هېڅ توپیر او تمیز سره ونه لري نو بیا به یو فرد له بل څخه څهٔ ډول جلا او ممتاز شي؟ د انساني نوعې ټول افراد په انسانیت او ژوند کې یو له بله سره شریک او ګډ دي او په بشري اړتیاوو کې هم سره ګډ دي خو د صفتونو او حالاتو په اعتبار بې حده سره مختلف او متفاوت دي، یو هوښیار او بل غبي، یو پلار بل زوی، یو خاوند بله مېرمنه وي، یو د حکومت وفادار وي او بل ورڅخه باغي وي، یو د حکومت د قانون منونکی او بل یې لندغر وي څهٔ چې یې په زړه کې تېرېږي ورځي او کوي یې او د حکومت د قانون پروا هم نه لري، یو کس د یو فن ماهر وي او بل جاهل او ناپوهه وي دواړه څهٔ ډول سره برابرېدلای شي؟

الله تعالی فرمایي: ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ الزمر : ۹

ژباړه : آیا پوهېدونکي او نه پوهېدونکي یو شانته کېدای شي؟

او بل ځای الله ﷻ فرمایي: ﴿أَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًاۚ لَا يَسْتَوُونَ﴾ السجدة : ۱۸

ژباړه : ښه نو، آیا دا کېدای شي: څوک چې مؤمن وي، هغه دې د هغه چا په څېر شي چې فاسق وي؟ دغه دواړه سره نهٔ شي برابرېدای.

له دې امله د شریعت پرېکړه دا ده چې د اشتراکیت او ګډوالی په درجه کې مساوات ده او د امتیاز په مرتبه کې د تفریق احکام دي د اشتراک او امتیاز احکام جلا جلا دي ترکومې اندازې پورې چې اشتراک دی تر هغه اندازه په حکم کې مساوات دی او له کوم صفت څخه چې امتیاز پیل کېږي له هغه ځایه د مساوات حکم بدلېږي او په احکامو کې بېلتون او امتیاز شروع کېږي، د هر امتیازي صفت لپاره جلا حکم وي، مثلا؛ ټول انساني افراد په انسانیت کې سره مشترک دي نو لهذا د انسانیت په حقوقو کې به هم ټول سره برابر او مساوي وي، د ځان او مال ننګ او ناموس په ساتنه کې به د مملت ټول افراد سره ساري او برابر وي که د انسانیت په حقونو کې یوې نوعې ته پر بله

نوعه يا يوې طبقې ته پر بله طبقه باندې فوقيت او پورته والی ورکړ شو نو دا ظلم او تېری دی، د انسانيت په حقونو کې امير او غريب، ښاري او کليوال، حاکم او محکوم ټول سره برابر دي.

د امير او فقير د ناحقه وژنې يو حکم دی چې هريو وژونکی د قصاص مستحق دی، هغه ښايي د نر قاتل وي که د ښځې، د امير قاتل وي که د فقير د ټولو حکم هم دا يو دی، د ماڼۍ د غلا او د جونګړې د غلا يو حکم دی، دا انساني حقوق دي په دې کې مساوات اړين دی چې د دغو ګډو صفوتونو او حالاتو څخه پرته د بني نوع انسان په افرادو کې څه امتيازات هم شته چې مختلف ډولونه لري، مثلا؛ په حسب او نسب کې پلار او زوی که څه هم په نفس حقيقت کې سره شريک دي خو پلار ته پر زوی باندې يو ځانګړی امتياز او پورته والی شته، شريعت د مور او پلار د امتياز او پورته والي ځانګړې پاملرنه کړې ده، پلار پر زوی باندې د تربيت او روزنې له امله يو ځانګړی امتياز لري، د دې امتياز له کبله شريعت په اولاد باندې د مور او پلار اطاعت، خدمت او له دوی سره ښه چلند فرض کړی دی، بې ادبي او له دوی سره ناخوښ چلند يې منع او حرام ګرځولی، چې په قرآن کريم او حديثونو کې په ښکاره توګه د دې بيان راغلی دی، د انسانيت او حسب او نسب له پلوه سره ګډ دي خو له دې اشتراک سره سره د دواړو په منځ کې توپير او امتياز شتون لري چې د دې امتياز له امله په احکامو کې يې هم امتياز راغلی، الله ﷻ فرمايي: ﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ﴾ النساء : ٣٤

ژباړه: نارينه پر ښځو مسلط اداره چيان دي ، له دې امله چې الله د هغو ځينو (نارينه و) ته پر ځينو نورو (ښځو) لوړتيا وربښلې ده، او له دې کبله چې نارينه خپل مالونه لګوي.

نران په ښځو باندې حاکم دي، لامل يې دا دی چې الله تعالی نرانو ته پر ښځو باندې د عقلي او بدني قوت او زور له کبله برتري او غوره والی ورکړی دی، دا خو د نارينه‌و يو ذاتي فضيلت شو، دويم فضيلت يې دا دی چې دوی پر ښځو باندې خپل مال لګوي، او ښکاره خبره ده چې مال ورکوونکی له مال اخستونکي څخه پرته له شکه غوره او افضل دی، او ښځه که له نر سره

برابره وای نو پر نر باندې به د هغې مهر واجب نه وای او نه به د هغې نفقه او لګښت واجب کېدلای، دا ذمه واري د دې غوره والی او برتري دلیل دی، کومه ښځه چې دا وايي چې له نر سره برابره یم، دې ته ښايي چې د مهر نوم وانخلي او د خپل خوارک او جامې د لګښت په خپله ذمه واره شي. خاوند او مېرمن د زوجیت یعنې د مېړه توب او ښځې توب د اړیکې له کبله سره ګډ دي، له دې امله د نارینه‌و د حقونو په ډول د ښځو هم حقونه شته، د خاوندانو لپاره دا نه ده روا چې د مېرمنو حقونه تر پښو لاندې کړي، خو نارینه په ښځه باندې یوه درجه فضیلت او غوره والی لري، له دې امله شریعت د نارینه‌و امتیازي حیثیت ته پاملرنه کړې چې په یو شمېر احکامو کې یې نارینه له ښځو څخه جلا کړي دي، الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ البقرة : ۲۲۸

ژباړه: د ښځو لپاره هم په نېکه توګه هماغسې حقونه دي، لکه څنګه چې د نارینه‌و پر هغو حقونه دي. البته نارینه پر هغو باندې یوه درجه (غوره والی) لري او پر ټولو باندې الله تعالی غالب مقتدر او د حکمت او پوهې څښتن دی.

الله تعالی لکه څنګه چې نارینه د ښځو سرپرستان جوړ کړي دي او پر دوی باندې یې غوره والی ورکړی دی له همدې غوره والي او د حقونو د پورته والي له امله د طلاق اختیار یواځې نارینه ته ورکول شوی دی، مېرمن له خاوند څخه طلاق غوښتلی شي خو خاوند ته طلاق نه شي ورکولی، او د نسب له ګډوالي د ساتنې په خاطر په یوه وخت کې له دوو خاوندانو سره نکاح نه شي کولی، خو خاوند ته تر څلورو د ګنو ښځو د نکاح اجازه ورکوله شوې ده، ځکه چې د خاوند د ډېرو ښځو له کبله د نسب د ګډوالي اندېښنه نشته خو پر خاوند د ټولو ښځو لپاره د زوجیت په حق کې عدل او انصاف واجب کړی شوی دی. دې ته ورته د اولادونو د روزنې له مخې زامن او لونې ټول سره برابر دي خو د نارینه د خدمتونو او ذمه واریو له کبله په میراث کې سره توپیر لري، الله تعالی فرمايي: ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾ النساء : ۱۱

ژباړه : ستاسې د اولادنو په اړه الله تعالی تاسې ته حکم کوي چې: د نارینه برخه د دوو ښځو په اندازه ده.

د رعیت ټول افراد د ولس والي له کبله سره برابر دي خو د ولس چې کوم افراد د حکومت مطیع او فرمانبردار دي د هغو احکام جلا دي او کوم چې له حکومت څخه یاغي او نافرمان دي د هغو احکام جلا دي، د دواړو ډلو احکام سره برابر نه دي او نه هم کېدلای شي، سرکښ باغي او نافرمان له مطیع او فرمانبردار سره برابرول له عقل او فطرت څخه او د سلطنت له قوانینو خلاف دی، الله تعالی فرمایي: ﴿أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ﴾ القلم : ۳۵

ژباړه: آیا مونږ به د امر منونکو حال د مجرمانو په څېر کړو؟ (یعنې دواړه سره برابر کړو)

یعنې د مسلمان او غیر مسلمان تر منځ توپیر اړین دی له دې امله چې په شریعت کې د مسلمان او کافر ذمي احکام مختلف او سره جلا دي. حاصل دا چې د هرې نوعې په افرادو کې چې په کومه اندازه اشتراک وي هغومره یې په احکامو کې مساوات وي او څومره چې ترمنځ توپیر دی هغومره یې په احکامو کې هم توپیر شته.

شریعت په ګډو چارو کې د اشتراک په کچه مساوات او برابري ته پاملرنه کړې ده او د توپیري چارو کې یې احکام سره جلا جلا کړل، الله تعالی فرمایي:
﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾ الحجرات : ۱۳

ای خلکو ! مونږ تاسې له یوه نارینه او یوې ښځې څخه پیدا کړئ او بیا مو تاسې قومونه او قبیلې وګرځولئ ترڅو چې تاسې یو تر بله سره وپیژنئ، په حقیقت کښې د الله په نزد له تاسې څخه تر ټولو زیات عزتمند هغه څوک دی چې په تاسې کې تر ټولو زیات پرهیزګار وي. په باوري ډول الله په هر څه پوهېدونکی او باخبره دی.

په لومړۍ جمله کې یې د انسانانو اشتراک بیان کړی دی چې په انسانیت کې ټول سره ګډ دي، په دویمه جمله کې یې د نسب او پرګنی توپیر بیان کړی دی چې له نسبي بیلتون څخه کوچنۍ او لویه پرګنی پیدا کېږي چې په کې د پرمختګ او ټولنې له اعتبار څخه اختلاف او توپیر پیدا کېږي او کله د صنعت او حرفت له امله مختلف وي، په نړۍ کې څه کاروبارونه غوره او د عزت

لامل ګڼل کیږي او څه بیا ذلیل او حقیر ګڼل کیږي، مثلا تجارت او سوداګري ته په درنه سترګه کتل کیږي او سوال کولو ته په سپکه سترګه کتل کیږي.

او په دریمه جمله کې یې دیني توپیر بیان کړی، غرض دا چې الله تعالی په دې آیت شریف کې اشتراک او مساوات هم بیان کړ او دیني او دنیوي توپیرونه یې هم بیان کړل، اشاره دې ته ده چې د مشترک احکام مشترک او مساوي دي او د مختلف او متمیز احکام هم مختلف او متمیز دي. اسلامي شریعت د اشتراک او امتیاز دواړه پلوونه په اعتدال سره سنبال کړل، د هر یوهٔ اندازه یې وټاکله او د هر یوهٔ احکام یې راوښودل، هیڅ لور او پلو یې هم له نظره ونه غورزاوهٔ، په یوهٔ ثقه او غوره قول کې راغلي: **( لا یزال الناس بخیر ما تفاضلوا فإذا تساووا هلکوا).**[1]

ژباړه: خلک به تل په خیر سره اوسي ترڅو چې د مرتبو توپیر په کې وي، او کله چې د مرتبو توپیر او درجه له منځه لاړه او ټول سره برابر شول، نو خلک هلاکیږي.

د نړۍ د پاتې والي لپاره اشتراک او انفراد دواړه اړین دي، چېرته چې اشتراک دی هلته شریعت د اشتراک په اندازه د مساوات حکم ورکړی دی او چېرته چې کوم توپیر او د یو شمېر ځانګړتیاو له کبله بیلتون دی هلته شریعت د امتیاز او بیلتون په اندازه جلا حکم ورکړی دی، نه په هر ځای کې مساوات چلیږي او نه په هر ځای کې انفراد دی، د هر یوهٔ ځای جلا دی.

الله تعالی چې چا ته مال او دولت ورکړ هغه ته یې د شکر حکم ورکړ او چا ته یې چې فقر ورکړ هغه ته یې صبر ورکړ، بنده د پراخۍ او مړښت په حالت کې د شکر له لارې مولی ته رسېدلی شي او د فقر او لوږې په حالت کې د صبر له لارې الله تعالی ته رسیږي.

که په نړۍ کې فقر او لوږه نه وای نو د مال او ثروت خاوندانو ته د جود او سخا عزت له کومه لاس ته ورغلی وای.[2]

---

[1] . فتح الباري شرح صحیح البخاري: ۱۳ ټوک ۱۶ مخ.

[2] . دستور الاسلام: ٢١٤ مخ

**د فاسق امامت روا دی او که نه؟**

اوس پوښتنه دا پیدا کېږي چې آیا له فاسق سره د امامت عقد له پیله (إبتداءًا) روا دی او که نه؟ او که امام له عقده وروسته فاسق شي بیا یې حکم څه دی؟

د جمهورو علماء کرامو په وړاندې له فاسق سره د امامت عقد نهٔ دی روا، البته د احنافو په وړاندې روا دی.

او که امام له عقد څخه وروسته فاسق شو، نو ځینې علماء یې لرې کول واجب بولي؛ خو په دې شرط چې که د فتنو او جګړو لامل نه جوړېدهٔ.

له اهل سنتو څخه جمهور محدثین، متکلمین او فقهاء کرام وایي چې په فسق، ظلم او د حقوقو په ځنډولو سره امام نهٔ عزل کېږي، او د دهٔ په خلاف پاڅون ناروا دی. ځکه چې د دهٔ په خلاف پاڅون سره د وینو تویول او فتنې راپېښېږي. ابو بکر بن مجاهد رحمه الله وایي چې په دې خبره باندې د علماء کرامو اجماع ده.[1]

**په یو وخت کې د دوه امامانو شتون روا دی او که ناروا؟**

عَنْ عَرْفَجَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: **" مَنْ أَتَاكُمْ، وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ، عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ، يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ، أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ، فَاقْتُلُوهُ "**. رواه احمد ومسلم.

له عَرْفَجَةَ رضي الله عنه څخه روایت دی هغه وایي : ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چې هغه مبارک وفرمایل چې (یو څوک تاسې ته په داسې حال کې راغی چې تاسې ټول په یو امام راټول شوي یاست، او دی غواړي ستاسې تر منځ اختلاف راولي او یا ستاسې دا ډله او جماعت سره جلا کړي، نو دا ووژنئ). احمد او مسلم دا حدیث روایت کړی.

**واتفقوا ـ أي الفقهاء ـ أنه لا يجوز على المسلمين في وقت واحد في جميع الدنيا إمامان، لا متفقان ولا مفترقان.**[2]

[1]. اعلاء السنن : ۱۲ ټوک ۶۱۸ مخ

[2]. الفقه الإسلامي وأدلته : ج٥ ص ٤١٦

په فقه اسلامي کې وايي : فقهاء کرام په دې متفق دي چې په مسلمانانو باندې په يو وخت کې په ټوله نړۍ کې دوه امامان نهٔ شي ټاکل کېداى، نه يوځاى او نه جلا جلا.

په دې اړوند د شرح المواقف مصنف په ۸ ټوک ۳۵۳ مخ کې يوه مسئله ليکلې چې د پښتو ژباړه يې دا ده :

که په يو ښار يا ډېرو ښارونو کې اتفاقا د امامانو ګنوالى پېښ شو، نو په دې کې چې له کوم يو سره وړاندې بيعت شوى وي هغه دې قوي کړاى شي، او که دويم امير په دې بعيت ټينګار کاوهٔ نو جګړه دې ورسره وشي ترڅو د الله تعالى امر ته تسليم شي.

او که د دوى بيعتونه په يو وخت کې شوي وو، يا يې بيعت تقديم او تاخير درلود خو چا ته يې علم نهٔ و، نو بيا دې د امام عقد له سره راوګرځي، چې د اهل حل وعقد په هر يو خوښه راغله هغه دې امام شي. او په يو وخت کې له دوه امامانو سره عقد ناروا دى، ابو يعلى حنبلي ﵀ وايي : که په امام باندې داسې ځوک پاڅون وکړي چې د مملکت غوښتونکى وي، او په دې کار سره خلک په فتنه کې واچول شي چې ځينې يې له امام سره ملګري شي او ځينې يې له متغلب سره، نو د جمعې لمونځ به له کوم يو سره کېږي؟ (ابو يعلى فرمايي) چې هر يو غالب وي له هغهٔ سره به لمونځ کېږي. دليل يې په دې نيولى چې عبد الله ابن زبير ﵁ د حرّې په زمانه کې په اهل مدينه و باندې لمونځ وکړ او دا يې وويل : مونږ لهٔ هغه چا سره يو چې غالبه وي. له دې معلومېږي چې کله دويم امام غالب شو نو د اول امام امامت ختمېږي، دا روايت د ابو الحرث دى. او په روايت د امام مروذي کې وايي چې د لومړي امامت نه ختمېږي.[1]

زمونږ په زمانه کې اعتبار غلبې لره دى، عادل او باغي په کې نه معلومېږي ځکه چې ټول د دنيا په لټه کې دي.[2]

[1]. الأحكام السلطانية : ۶ مخ
[2]. الجامع الفصولين : ۱ ټوک ۱۷ مخ

د جمهورو علماء کرامو پرېکړه دا ده چې د امامانو ګنوالی ناروا دی. دا پرېکړه هغه نصوصو ته په کتلو سره شوې چې وړاندې بیان شول، یو له هغو څخه دا دی چې (**إذا بويع الخليفتين فاقتلوا الآخر منهما**) يعني کله چې دويم خلیفه او امام د بیعت کولو اعلان وکړ هغه ووژنئ.

البته ابو اسحاق او امام الحرمين وايي چې په لرې پرتو ښارونو کې لکه په اندلس او خراسان کې د دوو يا درېيو شتون روا دی، او په نږدې ښارونو کې ناروا دی. او همدا قول ابن کثير او قرطبي د دې آيت مبارک په تفسير کې: ﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ البقرة: ۳۰ نقل کړی دی.

او همدا قول له هغو حالاتو سره ورتهوالی لري چې د بني عباسيانو سره په عراق او فاطميانو سره په مصر کې او د امويانو سره په مغرب کې تېر شوي دي.[۱]

که څوک دا پوښتنه وکړي چې په يو وخت او يو ښار کې د دوَو پيغمبرانو عليهم السلام شتون روا و، نو بيا ولې د دوه امامانو شتونه په يو وخت او يو ښار کې ناروا دي؟

ځواب يې دا دی چې د دوه امامانو شتون په يو وخت او يو ښار کې له دې کبله ناروا دی چې شريعت ترې منع کړې ده، او د دوه انبياو له شتون څخه يې منع نهٔ ده کړي.

او کومه خبره چې د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاويه رضي الله عنه ده، هغه د دوه امامانو شتون په يوه وخت کې نه دی بلکې حضرت معاويه رضي الله عنه د شام د ولايت دعوه درلوده چې بايد دی هلته د والي په حيث په خپلې هغې دندې پاتې شي چې پخوانيو خليفه ګانو پرې ګمارلی و. په دې خبره باندې چې دوی دواړه د يو وخت امامان نه وو د هغه وخت د مجتهدينو اجماع پرې دلالت کوي. او دوی دواړه په خپل منځ کې هم په دې قايل نه وو چې " زه هم امام يم او مخالف مې هم امام دی ".

---

۱. تفسير أضواء البيان : ۱ ټوک ۱۳۲ مخ

که څوک د عتراض له مخې وايي چې د دوو امامانو په منعه باندې کوم سمعي دليل نشته. نو ځواب يې دا دی چې د امت تر اجماع څخه کوم بل قوي سمعي دليل نشته او دا دليل موجود دی.[1]

**امت مسلمه لره کوم وخت روا دي چې امام له امامت څخه لرې کړي؟**

په مواقف او د هغهٔ په شرح کې وايي : که د امام له امله د ملت په احوالو کې ضرر راتهٔ او ديني چارو ته زيان رسېدهٔ، ملت د دې وس لري چې امام عزل کړي؛ لکه چې دا حق يې درلود چې امام وټاکي. او که د امام عزل فتنې ته رسېدهٔ؛ لکه د وينو تويول، بيا د دواړو ضررونو تر منځ دې لږ ضرر غوره کړي چې هغه د امام پاتې کېدل دي. او که د اهل اسلام څخه د مملکت له لاسه وتل راتلهٔ، بيا تر وينو تويولو لوی ضرر دی. خو تر ټولو لوی ضرر بيا دا دی چې مملکت د اسلام په نوم وي او په حقيقت کې له اسلامي احکامو څخه خالي وي.[2]

**د امامت او خلافت تر منځ څهٔ توپير دی؟**

امام عام دی، رياست ښتن ته امام وايي، که د خلفاء راشدينو په قدم روان وي او که نه.

او خليفه يوازې د رسول الله ﷺ ځای ناستي ته ويل کېږي چې د حکومت چارې به د هغه مبارکه په مبارکه لاره سم پر مخ بيايي.[3]

**د دستور او قانون توپير**

د حکمرانۍ د نظام او حکومت د بنسټيزو اصولو نوم دستور دی؛ يعنې چې حکومت څهٔ ډول او پر کومه تګلاره وچلول شي، د امارت، وزارت او ولايت او د نورو دندو څهٔ شرطونه دي، او کوم يې فرايض دي؟ د دې ټولو مجموعې ته دستور وايي. او د حکومت له انتظامي څانګو سره د اړوندو چارو او کړو وړو نوم قانون دی.

---

[1] . تفسير القرطبي : ۱ ټوک ۲۷۴ مخ

[2] . الدر المختار: ۳۴ مخ او امداديه : ۵ ټوک ۱۷۱ مخ

[3] . النبراس: ۵۱۴ مخ

**ختیځې او لوېدیځې ټولټاکنې په اسلام کې نشته**
کله چې د امیر د ټاکلو لاره د شریعت له مخې څرګنده شوه، یعنې د امیر اړوند صفتونو ښکاره بیان شول چې هر شخص امیر نهٔ شي کېدلی. او د اهل حل وعقد یا په بله اصطلاح د ټاکونکو یعنې رایه ورکوونکو صفات هم بیان شول چې هر شخص امام او امیر نهٔ شي ټاکلی. او څرنګه چې په ختیځو او لوېدیځو ټولټاکنو کې د ښو او غوره صفاتو درلودونکی په نظر کې نهٔ نیول کېږي، نو هلته بیا داسې کس ټاکل کېږي چې مسلمان هم نه وي، او که مسلمان وي نو بیا له دغو ټولو او یا ځینو غوره شرعي صفاتو څخه خالي وي، لکه چې د سر په سترګو یې مونږ وینو، چې د عادل پر ځای فاسق راځي او د عالم پر ځای جاهل او ناپوهه راځي، د نر پر ځای ښځه راځي العیاذ بالله چې بیا د دهٔ په ټوله دوره کې مسلمان ورسره لاس او ګرېوان وي.

همدا راز رایه ورکوونکی د اهل حل وعقد ځای نیسي، په هغو کې هم داسې خلک راځي چې د خدای د دوست او د دخدای د دښمن رایه په یوه تله کې تلي، د وطن پالونکي او له وطن سره مینه کوونکي، او بله خوا د وطن خرڅوونکي او جاسوس رایه سره برابره وي، آن دا چې د کافر او مسلمان رایه مساوي وي.

په اسلامي دولتونو کې د کفارو اقلیت ته هم د امیر په ټاکنه کې سهم او برخه ورکول کېږي. نو د دې لپاره چې دا مسئله یو څهٔ زیاته روښانه شي؛ لاندې یې په بشپړه توګه لیکو:

څوک چې چا ته رایه ورکوي یعنې د امیر ټاکنه کوي او د اهل حل وعقد پر ځای درېږي؛ نو د شریعت له مخې دې ټاکونکي ته درې صفات او دندې ورلهٔ غاړې کېږي، که دی دغه درې دندې په سمه او شرعي توګه ادا کړي، یعنې د امیر په صفاتو برابر شخص وټاکي. نو الله تعالی به دې شخص ته لوی اجر او ثواب ورکړي، او د امیر په ټولو نېکو کارونو کې به د دهٔ سهم او برخه وي. او که بالفرض دهٔ لهٔ واقعي سره سم کار ونهٔ کړ، نو دا بیا یو لوی جرم دی چې د الله تعالی له غضب او قهر سره به مخامخ کېږي.

رایه په معنی د ګواهۍ او شهادت ده. او دا دنده رایه ورکوونکي ته سپارل شوې، یعنې دی د نوماند په اړوند داسې ګواهي ورکوي چې دا سړی د دې

دندې وړتيا لري او د دې دندې د اجرا کولو صفات په کې موجود دي، له پورته ذکر شويو جرمونو څخه پاک دی.

که يې دغه رايه له واقعي سره سمه وي؛ نو بيا خو به الله تعالی ورته لوی اجر او ثواب ورکړي، او د امير د دورې په ټولو نېکو کارونو کې به د دهٔ سهم او برخه وي.

او که د خدای لپاره يې دا کار نهٔ و کړی، بلکې په دنياوي لحاظ سره يې شخص ټاکلی و، او په فاسق او ظالم باندې يې د درغو شاهدي ويلې وه؛ نو دهٔ نه يوازې له خپل ځان سره بلکې له ټول امت مسلمه سره خيانت وکړ. څو کاله چې د دهٔ دوره وي او څومره جنايتونه چې کوي په دې ټولو کې به د دهٔ برخه وي. الله تعالی فرمايي: ﴿كُونُوا قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِٱلْقِسْطِ﴾ المائدة : ٨

ژباړه: د الله لپاره په رښتينولی ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ.

بل ځای کې فرمايي : ﴿كُونُوا قَوَّٰمِينَ بِٱلْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلَّهِ﴾ النساء : ١٣٥

ژباړه : د عدالت علمبرداران شئ، د خدای لپاره شاهدان اوسئ.

او بل ځای فرمايي: ﴿وَلَا تَكْتُمُوا ٱلشَّهَٰدَةَ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُۥٓ ءَاثِمٌ قَلْبُهُۥ﴾ البقرة : ٢٨٣.

ژباړه: او شاهدي هېڅکله مه پټوئ، څوک چې شاهدي پټوي د هغه زړه په ګناه ککړ دی.

د الله تعالی رسول ﷺ د درغو شاهدي له شرک سره يوځای ذکر کړې.

دويم دا چې رايه ورکوونکي ته دنده يا صفت د شفاعت او سپارښت ورپه غاړه ده. نو که دا سپارښت په حقه وي يا په ناحقه؛ د دې دواړو خواو فکر هر عاقل شخص ته پکار دی چې له تېروتنې په کې په پوره توګه ځان وساتي، الله تعالی فرمايي: ﴿مَّن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً حَسَنَةً يَكُن لَّهُۥ نَصِيبٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً سَيِّئَةً يَكُن لَّهُۥ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ﴾ النساء : ٨٥.

ژباړه : څوک چې د نېکۍ شفاعت (سپارښت) وکړي، هغه به له هماغې څخه برخه ومومي. او څوک چې د بدۍ شفاعت (سپارښت) وکړي نو هغه به له هماغې څخه برخه ومومي.

نو که رایه ورکوونکی د یو متقي عالم او عادل شخص سپارښت وکړي، نو په دې سپارښت کې په د دهٔ اجر او ثواب وي او په ټولو نېکو کارونو کې به یې د دهٔ برخه وي.

او که دی د فاسق ظالم او نااهله سپارښت وکړي؛ نو دهٔ نه یوازې له خپل ځان سره خیانت وکړ بلکې له ټول امت مسلمه سره یې خیانت وکړ او یوه بده لاره یې پرانسته. او د دې نا اهله په ټولو جنایتونو که به د دې رایه ورکوونکي برخه او سهم وي. په حدیث شریف کې راغلي : **(من استعمل رجلا على عصابة وفيهم من ارضى لله منه فقد خان الله ورسوله وجماعة المسلمين).**[1]

ژباړه: چا چې د قومیت یا خپلولۍ پر مټ یو چاته دنده وسپارله چې هلته له دې شخص څخه غوره شخص چې الله تعالی ترې راضي و شتون درلود؛ نو دې ټاکونکي له الله تعالی او د هغه رسول او د مسلمانانو له جماعت سره خیانت وکړ.

او که د ولس استازی په سمه توګه استازیتوب ونهٔ کړي د لاندې ارشاد ځواب به څرنګه ورکوي؟ **(لا بد للقوم من العرفاء ولكن العرفاء في النار)** یعني د خلکو له دې څخه خلاصون نشته چې یو استازی ولري، او که استازی په ناحقه استازیتوب وکړي هغه به په دوزخ کې وي.

خطیب بغدادي رحمه الله د علي ﷺ دا روایت راوړی چې مبارک فرمایي : **(قلت يا رسول الله الأمر ينزل بنا بعدك لم ينزل فيه قرآن ولم يسمع منك فيه شيء قال : أجمعوا له العابدين – وفي رواية الفقهاء- من أمتي واجعلوه بينكم شورى ولا تفتوه برأي واحد).**

ژباړه : ما له رسول الله ﷺ څخه وپوښتل: که له تا څخه وروسته داسې کومه نوې خبره یا کار وشي چې د هغې په اړه نه قرآن نازل شوی وي او نه مو لهٔ تا څخه اورېدلې وي؛ نو څهٔ فیصله به کوو؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسې

---

[1] . جند الله: ۴۱۷مخ

زما له امت څخه عابدين او فقهاء راټول کړئ د هغو د فتوی له مخې يعنې د شورا له مخې دا کار اجراء کړئ او د يو سړي په رايه فيصله مۀ کوئ.[1]

نو کله چې د شورا اهميت د قرآن په آيت مبارک کې ذکر شو او په دې حديث کې هم د عابدينو او فقهاو شورا د اعتبار وړ وګرځيده، او د يوۀ سړي په رايه فتوی منع شوه؛ نو د اسلامي حکومت نظام روښانه او څرګند معلوم شو. او د شرق او غرب (ختيځ او لوېديځ) عمومي ټولټاکنې چې د ټاکونکي او ټاکل شوي دواړو صفات په کې په نظر کې نۀ نيول کيږي، له همدې کبله دا ټولټاکنې باطلې دي ځکه چې په هغو کې عابدين او فقهاء شتون نۀ لري.

نو لکه څرنګه چې امارت يو لوی امانت دی نو بايد اهل ته وسپارل شي، خيانت په کې ونۀ شي. اهل د امارت هغه څوک دی چې د امير مواصفات ولري. او سپارش کوونکی يا ووټ ورکوونکی بايد مواصفات د اهل شورا ولري يا په بل عبارت چې مواصفات د اهل حل وعقد ولري. او دا دواړه په عمومي غير اسلامي ټولټاکنو کې نشته. الله تعالی فرمايي ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا﴾ النساء ۵۸

ژباړه : مسلمانانو! الله تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ.

او علامه قرطبي رحمه الله وايي : (**هذه الاية من امارة الأحكام تضمنت جميع الدين والشرع**).

ژباړه : دا آيت د قرآن کريم له مهمو آياتونو څخه دی چې د دين او شريعت ټول احکام په کې ځای شوي چې يو له هغو څخه امارت دی.

نو معيار ددی امانت يوازې اهليت دی نه قوميت يا ژبه يا تنظيم او داسې نور.

او په اوسنيو ټولټاکنو کې هېڅکله معيار اهليت نه دی او نه کېدای شي لکه چې هر څوک پوهېږي، هلته کله معيار نغده وي يا تنظيمې اړيکې وي يا قوميت او يا داسې نور.

[1] . روح المعاني : ۲۵ ټوک ۴۶ مخ

او د دې خبرې ثبوت چې امارت يو لوی او عظيم امر دی او لوی امانت دی او اهل غواړي له ذکر شوي آيت څخه پرته دا حديث مبارک هم دی : **(يا ابا ذر انک ضعيف وانها امانة)** کله چې ابو ذر ﵁ د امارت غوښتنه وکړه نو جناب رسول الله ﷺ دا هدايت ورکړ "اي ابو ذره ته ضعيف يې او امارت يو لوی بار او امانت دی".

هر څوک چې دغه امانت غير اهل ته وسپاري د لاندې آيت مبارک ځواب به د دۀ په غاړه وي، الله تعالي فرمايي: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ المائدة : ٢

ژباړه : کوم کارونه چې د نېکی او خدای پالنې دي په هغو کې له ټولو سره مرسته وکړئ، او کوم کارونه چې د ګناه او تيري وي په هغو کې د هېچا ملاتړ مه کوئ.

بل آيت مبارک دی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ﴾ الممتحنة :١

ژباړه : ای ايمان راوړنکو، زما او ستاسې دښمنان، خپل دوستان مه نيسئ.

بل آيت مبارک دی: ﴿قَالَ رَبِّ بِمَا أَنْعَمْتَ عَلَيَّ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِلْمُجْرِمِينَ﴾ القصص :١٧

ژباړه : موسی عليه السلام وويل : ای زما ربه ! دغه احسان چې تا پر ما باندې کړی دی، نو زه به هېڅکله د مجرمانو ملاتړ نه شم.

بل آيت مبارک دی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا﴾ الأحزاب :٧٠

ژباړه : ای مومنانو! د الله تعالی څخه ووېرېږئ او سمه خبره کوئ.

**د ټولټاکنو په اړوند د يوې مهمې مسئلې ليکل اړين دي**

د زده کوونکو د ازموينې نمرې، برى ليکونه او شهادت نامې، د ټولټاکنو رايه، دا ټول د شهادت په حکم کې داخل دي. د شهادت د لفظ او ګواهي چې کوم مفهوم په نن زمانه کې په عرف کې مشهور دی ، هغه د يو قاضي يا حاکم په وړاندې يوازې ګواهي ورکولو ته ويل کيږي. مګر د قرآن او حديث

په اصطلاح کې د شهادت لفظ له دې څخه زيات فراخ مفهوم لري، مثلا کوم مريض ته د ډاکټر سند ورکول چې دا شخص د ډاکټرۍ د کار کولو قابل نه دی يا د نوکرۍ کولو قابل نه دی دا هم يو شهادت دی ، نو که يې په دې کې خلاف د واقعې څخه څه شی ليکلي وي نو دا د درواغو شهادت بلل کيږي او کبيره ګناه ده.

دې ته ورته د زده کوونکو په ازموينو کې په کوم کاغذ نمبر لګول چې دا اول نمبر يا دويم دی دا هم يو شهادت دی نو که په دې کې سستي يا بې پروايي يا زيادت او کمبود وشي نو دا هم کاذبه شهادت بلل کيږي، حرام او سخته ګناه ده. فارغ التحصيل طالبانو ته د سند ورکول دا هم يو شهادت دی، مثلا ورته ليکلي يې وي چې دا شخص د فلان کار لپاره اهليت او صلاحيت لري ، نو که دا شخص په حقيقت کې همداسې نه وي نو دا سند ورکونکی او لاسليک کوونکی شهادت کاذبه ادا کړی او مجرم ګرځېدلی. دی ته ورته د ولسي جرګې يا مشرانو جرګې په ټولټاکنو کې کوم نوماند ته رايه ورکول دا هم يو شهادت دی، چې د رايه ورکوونکي له خوا يوه ګواهي ده چې زما په وړاندې هم دغه شخص د خپل استعداد او قابليت ، ديانت او امانت په اعتبار سره د قوي نمايندګي قابل دی.

اوس نو دا غور پکار دی چې زمونږ په استازو کې به څومره داسې خلک وي چې د هغو په حق کې به دغه وړ شاهدي رښتوني او صحيح ثابته شي، مګر زمونږ عوام ورونه يوازې د چا ناکامي او بريالیتوب يوه لوبه بولي، نو له همدې امله کله د رايې ورکولو حق د پيسو په بدل کې خرڅيږي، او کله کله د چا د وېرې له کبله يو چاته رايه ورکول کيږي، او کله کله بې وفا دوستانو او ذليلو او د دروغو وعدو په اعتبار ورکول کيږي او هېڅ کله هم ديندار او مسلمان خلک د رايې ورکولو په وخت کې دا نه محسوسه وي چې ما خو د درواغو شاهدي ورکړه مستحق د لعنت او عذاب وګرځېدم، الله تعالی فرمايي : ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ البقرة :٢٨٣

ژباړه : تاسو حق شهادت مه پټوئ او چې څوک حق شهادت پټ کړي نو د هغه زړه ګناه ګار کيږي.

آيت مبارک رښتينې شاهدي واجب بولي او پټول يې ګناه بولي.

نوماندانو ته رايه ورکول د قرآن له مخې يو بل حيثيت هم لري چې هغه ته شفاعت يا سفارش ويل کيږي، په دې معنی چې ووټ ورکوونکی ګويا دا سفارش کوي چې فلاني نوماند ته تاسو استازيتوب ورکړئ. په دې اړوند د قرآن کريم الفاظ دا دي: ﴿مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا وَمَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُنْ لَهُ كِفْلٌ مِنْهَا ﴾ النساء : ٨٥.

ژباړه : يعنې کوم شخص چې صحيح او رښتينی سفارش وکړي ، نو چې د چا شفاعت کوي نو د هغه له نيک عمل څخه به ده ته هم سهم او برخه رسيږي او چې څوک بد سفارش کوي (يعنې د کوم نا اهله او بد شخص د کاميابۍ کوشش کوي) دې سفارش کوونکي ته به د ده له بدو اعمالو څخه برخه رسيږي.

يعنې که دغه اميدوار د خپلې نمايندګۍ په زمانه کې څومره بد او غلط کارونه وکړي د هغو کارونو وبال به دغه ووټ ورکوونکي ته هم رسيږي.

د رايې دريم شرعي حيثيت د وکالت دی ځکه چې رايه ورکوونکی دغه نوماند د خپل ځان نائب او وکيل ګرځوي او دا وکالت له داسې حقوقو سره اړيکه لري چې له ووټ ورکوونکي سره ټول قوم په دې حقوقو کې شريک دی، نو له همدې امله که کوم نا اهل ته رايه ورکړي او کامياب يې کړي نو د به د ټول قوم حقوق پايمال کړي وي او ګناه به يې د ده په غاړه وي.

نو خلاصه دا شوه چې زمونږرايه درې حيثيته لري : يو يې شهادت ، دويم يې شفاعت او دريم يې په مشترکو حقوقو کې وکالت دی، په دې درې واړو حيثيتونو کې لکه څرنګه چې نيک قابل شخص ته رايه ورکول په دنيا کې موجب د لوی ثواب دی او ثمرات به يې ده ته رسيږي ، دې ته ورته نا اهل غير متدين شخص ته رايه ورکول له يوه لورې د درواغو شهادت او بد شفاعت دی، او له بلې لورې ناروا وکالت دی، او تباه کن ثمرات به يې د ده په اعمال نامه کې ليکل کيږي. نو له همدې امله په هر مسلمان رايه ورکوونکي باندې دا فرض دي چې له رايې ورکولو څخه وړاندې پوره تحقيق وکړي چې رايه

چاته ورکوي هغه د کار وړتيا لري او که نه، او يا ديانتدار دی او که نه، تر څو په غفلت او بې پروايي سره بلا سببه د لويي ګناه مرتکب نه شي.[1]

**يوه اړينه خبرتيا**

وړاندې چې کوم بيان وشو له هغه څخه د قرآن او سنت په رڼا کې دا څرګنده شوه چې نا اهل ، ظالم ، فاسق او غلط شخص ته رايه ورکول يوه لويه ګناه ده. دې ته ورته بيا کوم نېک او قابل سړي ته رايه ورکول لوی ثواب دی، بلکې يوه شرعي فريضه ده. لکه څرنګه چې قرآن کريم د دروغو شاهدي حرام ګرځولې دې ته ورته يې رښتونې شاهدي واجب او لازم ګرځولې ده. الله تعالی فرمايي : ﴿كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ﴾ المائدة : ٨

ژباړه: د الله لپاره په رښتينولۍ ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ.

بل ځای کې فرمايي : ﴿كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلَّهِ﴾ النساء : ١٣٥

ژباړه : د عدالت علمبرداران شئ، د خدای لپاره شاهدان اوسئ.

په دغو دواړو آيتونو کې په مسلمانانو شاهدي فرض کړی شوې ده، چې له رښتوني شهادت څخه به ځان نه پټوي، د الله تعالی په خاطر به د شهادت لپاره درېږي. بل ځای فرمايي: ﴿وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ﴾ الطلاق : ٢

ژباړه : شاهدي د الله لپاره ادا کړئ.

په يو بل آيت کې فرمايي چې رښتونی شهادت پټول ګناه ده : ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ البقرة : ٢٨٣.

ژباړه: او شاهدي هېڅکله مه پټوئ، څوک چې شاهدي پټوي د هغه زړه په ګناه ککړ دی.

[1] . معارف القرآن : ٣ ټوک ٧٢ مخ

دغو ټولو آيتونو ته په کتلو سره په مسلمان فرض ده چې له رښتوني شهادت څخه ځان پټ نهٔ کړي، او خامخا يې ادا کړي.

نن سبا چې کوم خرابی په ټولټاکنو کې تر سترګو کيږي د هغو يو لوی لامل دا هم دی چې نېک او صالح خلک له ووټ ورکولو څخه ډډه کوي چې پايله يې همدا ده چې وينو يې، هغه دا چې رايه عموما هغو خلکو ته ورکوله کيږي چې يو څو روپۍ يې په بدل کې ورکوي. او د دغسې رايه ورکوونکيو په واسطه چې کوم استازي په قوم مسلط کيږي خلک يې ويني چې کوم قسم کردار ادا کوي؟ نو په دې پروسه کې چې کوم نېک سړی له ووټ ورکولو څخه ډډه کوي؛ دا ناروا دی او په ټول قوم باندې ظلم دی.

که په صحيح معنی کوم کانديد نه پيدا کيږي خو د نورو خلکو په پرتله يو سړی نېک وي؛ هغه ته رايه ورکول هم ښه کار دی. ځکه چې د ظلم لږ والی خو به راشي، لکه چې فقهاو ليکلي چې (څوک د بشپړ ظلم د لرې کولو وس نه لري نو د ظلم تقليل او لږ والی دې وکړي). دا هم يو تجويز دی چې فقهاو وړاندې کړی.

خلاصه دا چې په ټولټاکنو کې د شاهدي پټول هم حرامه ده، او په درغو شاهدي ورکول هم حرامه ده، او د ووټ په مقابل کې پيسې اخستل هم حرام دی او ګناه ده. يعنې نا اهل ته رايه ورکول کومه شخصي معامله نه ده، او که په شخصي معامله کې تېروتنه وشي اثر يې هم شخصي او محدود وي، نو ثواب او عذاب يې هم محدود وي. مګر په قومي او ملکي معاملاتو کې ټول قوم متاثر کيږي، نو د پوره قوم د تباهۍ لامل ګرځي، نو ثواب او عذاب يې هم ډېر وي. نو د ټولټاکنو په پروسه کې يو نېک سړي ته په رايه رکولو کې سستي کول ګناه کبيره ده.

کوم استازی چې د اسلامي نظام په خلاف فکر لري هغه ته رايه ورکول د درغو شهادت دی چې ګناه کبيره ده، او د پيسو په مقابل کې رايه ورکول بدترين رشوت دی او له اسلام او ملک څخه بغاوت دی او د بل چا لپاره دنيا ګټل او خپل دين خرابه‌ول هوښيارتوب نه دی، رسول الله ﷺ فرمايي : هغه

شخص تر هر چا زیات تاواني دی چې د بل چا د دنیا لپاره خپل دین له لاسه ورکړي.[1]

## د اسلامي حکومت نظریه

د اسلامي حکومت نظریه او د کتنې او تمرکز ځای به دا ټکی وي چې چارواکي او د حکومت فرمان چلوونکي به خپل ځان حقیقي حاکم نه بولي بلکې داسې په یې ګڼي چې اصلي حاکم هغه احکم الحاکمین دی کوم چې د اسمانونو او ځمکې پیدا کوونکی دی، لکه څرنګه چې الله ﷻ فرمایي : ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ الأنعام : ۵۷

ژباړه : له الله ﷻ پرته د حکم او فیصلې واک هېچا لره نشته. بل ځای فرمایي : ﴿فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ﴾ غافر : ۱۲

ژباړه : حکم یوازې د لوړوالي او لوی والي د خاوند دی.

بل ځای فرمایي: ﴿لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ المائدة : ۱۲۰

ژباړه : د اسمانونو او د ځمکې او ټولو موجوداتو پاچاهي یوازې د الله تعالی ده او هغه په هر څه قادر دی.

دغه حاکم دې دا وګڼي چې زه د هغه احکم الحاکمین رالیږلیو احکامو او قوانینو پلي کوونکی یم. په دې ډول حکومت کې د امریت او ملوکیت او استبداد او ایله والي شونتیاوې ختمیږي. د الهي حکم په وړاندې امیر او فقیر ټولو ته د منلو او سر ټیټولو وړ وي. د مملکت په امیر باندې په دې پوهېدل فرض دي چې د الله تعالی د احکام او د خاتم الانبیاء د شریعت د لاندې د پاچاهي برابرول کوم.

[1] . خلاصه جواهر الفقه : ۲ ټوک ۳۵۰ مخ

## د اسلامي پاچاهي موخه

د اسلامي حکومت اصلي موخه او غرض دين په ځمکه کې پلي کول دي، يعنې په مملکت کې د الله جل جلاله دين ټينګول او محکمول او په خلکو کې عدل او انصاف په پښو درول دي، لکه چې الله ﷻ فرمايلي: ﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُم فِي الْأَرْضِ﴾ النور : ٥٥

ژباړه : الله تعالى ستاسې له هغو کسانو سره چې ايمان يې راوړی او ښه عملونه وکړي، وعده کړې ده چې هغوی په ځمکه کې خليفه ګان وګرځوي.

يعنې د اسلامي حکومت دوه غرضونه دي : يو د دين د ستنو ټينګول او په ښکاره توګه د ديني احکامو جاري کول او پلي کوی دي. او دويم د امنيت ټينګول دي.

په آيت شريف کې د استخلاف في الأرض يعنې د حکومت او اقتدار چې کومه وعده شوې ده هغه له مؤمنانو صالحانو سره اړينه ده، د دولت او حکومت غړي او حاکمان خپله د ايمان او عمل صالح له ټکي څخه نه دي وتلي، دا چې د نېک عمل حکم يوازې عوامو ته دی، وزيرانو او حاکمانو ته نه دی دا يو خام او اوم ګمان او خيال دی. الله تعالى فرمايي: ﴿هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ﴾ التوبة : ٣٣

ژباړه : هماغه الله دی چې خپل پيغمبر يې له هدايت او حق دين سره رالېږلی دی، ترڅو چې هغه په ټولو دينونو باندې برلاسی کړي.

له دې آيت څخه تر لمر سپينه شوه چې د محمدي پاڅون او د اسلام د دين د راکوزولو اصلي موخه او مير دا دی چې د اسلام دين په ټولو ازمونو او دينونو باندې غلبه او لوړوالی وګټي. الله ﷻ فرمايي : ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۖ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾ الحديد ٢٥

ژباړه : (مونږ خپل پيغمبران له روښانه څرګندو نښانو او لاربښوونو سره ولېږل؛ او له هغو سره مو کتاب او تله نازل کړل، تر څو خلک پر عدل ولاړ وي. او اوسپنه مو راکوزه کړه چې په هغې کې ډېر زور دی).

له دې آیت شریف څخه ښکاره معلومیږي چې د رسولانو د رالیږلو او د کتابونو د رانازلولو غرض او موخه دا ده چې خلک عدل او انصاف په پښو ودروي. نو باید د اسلامي حکومت د قانون لومړی ماده به دا وي چې د حکمرانانو لومړی دنده په ځمکه کې د دین ټینګول دي، او د دین اعلان به په ډاګه کوي او اسلام به په ټولو دینونو باندې غالبه او برلاسی لري، او په خلکو کې به عدل او انصاف قائموي او څوک چې په سم ډول عدل او انصاف ونه مني نو هغه به د سوټې وهلو په زور سموي. او د دې آیت ﴿وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ﴾ همدغه مطلب دی.

**د حکومت ډولونه**

اسلامي حکومت د ملوکیت او جمهوریت تر منځ یوه منځګړې لاره ده. د اسلامي حکومت بنسټ د الله تعالی په فرمانروایي او د هغهٔ په نازل کړی شوي شرعي قانون باندی ولاړ دی. او د غیر اسلامي حکومت بنیاد د غیر الله په فرمانروایي او د مخلوق په لاس جوړ شوي قانون باندې ولاړ دی.

شریعت خو یوې لورې ته دا حکم ورکړی چې د مملکت امیر به په فلان او فلانیو صفتونو سره موصوف وي ـ د کومو چې وړاندې ذکر وشو ـ . او دویم لورې ته یې د مملکت امیر ته دا حکم ورکړی چې د ممکلت د چارو په لړ کې به د مشورې کولو لپاره یو داسې مجلس او شورا جوړه کړي چې غړي یې په پورتنیو صفوتونو سره موصوف وي. له هغه څخه وروسته یې د ممکلت امیر ته حکم ورکړ چې د شریعت د قانون بشپړه پابندي وکړي. له هغه وروسته یې ولس ته دا حکم وکړ چې د داسې امیر اطاعت پر تاسې باندی فرض دی.

د نن سبا په اصطلاح کې د ازادۍ او جمهوریت قوام او قیام د قانون په بالادستۍ او برلاسۍ باندې دی چې د جمهوریت وده له دې پرته ناشونې ده. همدا ډول د اسلامي حکومت قوام او قیام د شریعت د قانون په بالادستۍ او برلاسۍ باندې دی.

شرعیت وایي چې تاسې د خدای د قانون تابعداري وکړئ کوم چې په بشپړ عدل او انصاف، او په پوره شفقت او مرحمت باندې ولاړ دی، او ستاسو د ټولو حقوقو ساتونکی او محافظ دی او ستاسې په دیني، دنیوي او اخروي ګټو

باندې راټول دی. غرض دا چې اسلامي حکومت نه د قیصر او کسری غوندې خپل سری، خپل چاری، د شخصیت او ملوکیت ، جبر او استبداد دی او نه د اوسني وخت جمهوریت دی چې د داسې رأیو په بنا جوړېږي چې له امله به یې ټول ملک د جګړې د اورنو ځاله او د دښمنیو زانګو جوړه شي. او حکومت د داسې ډلې تېپلې تر تاثیر لاندې راشي چې ډېره او لوړه برخه یې د غوړه مالانو او د بل د لاس د ګوډاګیانو وي، بیا چې څه پېښېږي هغه پېښېږي. عیان را چه بیان.[1]

دین او اسلام ته چې کله ضربه رسېږي او له کړاوونو او افتونو سره مخ کېږي دا له دې درېیو خلکو ؛ د بدکاره فقي، د ظالم پاچا او د ناپوهه مجتهد له لاسه وي.[2]

**د ملوکیت او شخصیت مفاسد**

دا ډېر لوی دی خو خلاصه یې دا ده:

یو سړی د ټول ملک د وېش، او د ملک د تور او سپین مالک ګرځي.

په ټول ملک کې د دهٔ حکم چلېږي او هېڅ ته د ده خلاف د ساه اخستلو وس نه وي، چې ټول ملک یې غلام او مریې وي. که دی ظلم کوي او که انصاف، د ده په خلاف هېڅوک د شونډو د ښورولو اجازه نه لري.

د پاچاهي دنده د ده اولاد ته میراث غوندې پاتې کېږي، هغه که وړ وي او که نا اهله وي، مطب دا چې د ملکوکیت او شخصیت قانون یوازې د پاچا ژبه ده، او د الله تعالی ټول مخلوق ولسونه د دهٔ د ذاتي خواهشاتو د لیک تخته ده. نو ښکاره ده چې په داسې صورت کې د ولسونو څه حقوق نه شي ادا کېدلی او پاچاهي په سم او صحیح نظام نه شي چلېدلی.

**د موجوده جمهوریت مفاسد**

د اوسنی زمانې په چیغو کې د جمهوریت کریکه ځومره نږدې غوندې ده، د هغې ساری موندل ګران دي، په جمهوریت کې په ښکاره ډول که څهٔ هم هغه

---

[1]. دستور الاسلام

[2]. کشف الغناء : ۱ ټوک ۱۸ مخ

فسادونه نشته کوم چې په ملوکيت کې شتون لري چې د نړۍ د ويجاړتيا او پوپنا کولو ذريعه ده خو:

په شخصي حکومت کې د يوۀ کس پاچاهي وي او په جمهوريت کې د يوې ځانګړې ډلې حکومت وي، چې د فلسفې د مسئلې به بنا دې ډلې او ټولې ته د شخصيت حکمی وايي. ځکه چې قانون جوړيږي نو د ټولو رايو په يو والي سره جوړيږي، په ولسي جرګه کې د هر سړي انفرادي رايه اعتبار نه لري بلکې ټولنيزه او اجتماعي رايه معتبره ده، او ښکاره خبره ده چې د شلو کسانو تر حکومت د يوۀ کس حکومت ښه دی، ځکه د يوۀ رايه او فرمان يو ده او د شلو رايه او فکرونه او غوښتنې چې نه وي نه وي هم اخر په شلو لارو ځي.

په شخصي حکومت کې پاچاهي ولي عهدي او خانداني ميراث دی او په جمهوري حکومت کې ټولټاکنې يعنې انتخابات کيږي او رايه اچوي. کله چې د کوم يوۀ د پاچاهۍ موده پای ته رسيږي نو د ټاکنو بهير پيلېږي چې له دې ټاکنو څخه ټوله پاچاهي د خپل منځي جګړو او شخړو د څپو وهلو ځای جوړيږي، په ولي عهدي کې پر پاچاهۍ دا مصيبتونه خو نۀ راځي.

پاتې شوه دا مسئله چې په ولي عهدي کې د اهليت او صلاحيت شرط نشته، نو دا شرط خو په موجوده ټولټاکنو کې هم نشته، چا چې ډېرې رايې وګټلې قدرت د هغۀ شو، که څه هم اهل يې نه وي.

د جمهوريت عمارت او بنا دکوم خپلواک دستور او قانون پر بنسټ باندې ولاړ نه دی بلکې د جمهورو او عامو ولسونو په تاييد او ميلان باندې ولاړ دی.

د پرېکړې دارومدار يوازې د رايو په ډېروالي باندې وي استدلال او برهان ته په کې کوم ځای نۀ وي.

په موجوده جمهوريتونو کې د قانون جوړولو ټول اختيارات د برسر اقتدار ګوند او ډلې په لاس کې وي. که څۀ هم د قانون جوړونې په مجلس کې نور ګوندونه هم برخه لري، خو ښکاره خبره ده چې برسر اقتدار ګوند د خپلو تاييدونو او ميلانونو سره سم قوانين جوړوي او پلي کوي يې. او چې کله هم يو ګوند برسر اقتدار راشي نو تر هر څۀ وړاندې هغه قوانين ورلغوه کړي، هر که آمد عمارت نو ساخت.

برسر اقتدار ګوند د مملکت د تخت او وېش مالک وي او په ډول ډول تدبیرونو او چلونو سره د پاچاهۍ په ګټو او منفعتونو باندې منګولې لګوي او ټول قوم له ګټو اوو منافعو څخه بې برخې کوي، تر دې چې قوم له عدل او انصاف څخه هم محرومېږي. برسر اقتدار ګوند چې د رایو په اکثریت سره کومه پرېکړه وکړه هغه عدل او انصاف ګڼل کېږي.

د الله تعالی مخلوق له شفقت، لورینې، ترحم او له انساني همدردۍ څخه بې برخې پاتې کېږي. د الله تعالی په مخلوق باندې د چیغو وهلو دروازه هم بندېږي. له کومه وخته چې د جمهوریتونو دوره پیل شوې ده، نو بدو چارو، بد عملونوو او د خپل منځي شخړو دروازه پرانستله شوې ده.

د پیسو په بدل کې د خلکو رایه اخستل کېږي، په لړو پیسو یې اخلي او چې قدرت لاس ته ورشي نو ډېر پیسې پرې ګټلای شي. په حدیث شریف کې راغلي (اللهم لا تسلط علینا من لا یرحمنا) ای الله ! ته په مونږ داسې څوک مه مشر کوه چې په مونږ لورینه او رحم ونهٔ لري.[1]

**نظام حکومت اسلامی نه شخصی است و نه جمهوری**

در حقیقت بنیاد جمهوریت های جهان بر لا دینی استوار است، زیرا که در نظام جمهوری اعتبار کثرت است مذهب را در دین دخلی نیست بلکه هر صاحب را حق آزادی تقریر وتحریر اجرای مجله و جراید برای تبلیغ مذهب خود حاصل است، در حقیقت نظام جمهوری یک تحریک است بر قایم کردن یک دهریت، اگر جمهوریت نمی بود سوشلیزم وکمونیزم در شوروی، چین و دیگر کشورهای همنوای ایشان هرگز نمی آمد، خلاصه این که در ریگستان خوشک اگر ماهی زندگی کرده نمی تواند، و در زمین شور زراعت نمی شود، و در تاریکی که از هوا خالی باشد انسان زندگی به سر برده نمی تواند، پس در تاریکی نظام اسلام هرگز پیشرفت کرده نمی تواند.

هویدا است که نظام حکومت اسلامی نه شخصی است ونه جمهوری، در دین مقدس اسلام انتخاب پیامبر ﷺ و فرمان روایی آن ذات مبارک به کلام الهی بود که در آن کفار هم شک نمیکنند، اما بعد از پیامبر ﷺ خلافت صدیقی، عدل فاروقی و فتوحات عثمانی همه نتیجه یک ریاست و حکومت اسلامی

[1]. دستور الاسلام : ۱۰۲ مخ

بود. در اسلام نه شخصیت محض را اجازت است و نه جمهوریت شرقی و غربی را گنجایش؛ زیرا که در حکومت شخصی قانون اساسی اختیارات همگی از طرف بادشاه و مطابق خواست آن می باشد بکلی خود را در مقام "لا ینسل عما یفعل" می بیند و کابینه و اراکین شوری در معامله از خدا غافل گشته پسند و ناپسند شاه را ملحوظ می دانند، و اشارت شاهی را حکم قطعی تصور می کنند.

و در حکومت جمهوری قانون اساسی و اختیارات همگی از طرف عوام و مطابق خواهشات آنها می باشد چنانچه گذشت، و نیز جمهوریت خواه شرقی باشد یا غربی به هر چه که در عالم رایج است، متکفل قیام، عدل، انصاف و ایفای حقوق بشری نمیتواند شد، زیرا که رعایت حقوق بشری بدون اتکا بدین سماوی امکانی ندارد.

مگر در حکومت اسلامی که نظامش براساس خلافت قایم است ، قانون خدا و رسول می باشد، تنفیذ و اجرای آن مفوض به حکومت است. پس در این نظام اسلامی رعیت قانون خدای و دستور سماوی است و حکام در جستجوی حکمی میباشد که خلاف رضای خدا و رسول ﷺ نباشد، و همچنان خلاف کتاب الهی و سنت رسول ﷺ نباشد، نه رای شخصی را در تنفیذ و احکام اسلامی دخل است و نه رای جامعه را، بلکه همگی منقاد حکم و فیصله الهی اند، نمونه های آن خلفای راشدین پیش کرده اند و کلیات آن در کتاب و سنت موجود است، تا قیام قیامت حاکمان اسلام را هدایت است، که مطابق آن وحی سماوی فیصله های خود را صادر و حل و فصل نمایند.

در نظام حکومت اسلامی دو رکن عظیم ضروری است که بدون آن اساس حکومت مستحکم نمیشود؛ یکی صداقت، دوم عدل و انصاف، چنانچه ارشادات است، ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا﴾ الأنعام : ۱۱۵، البته انتخاب خلیفه در اسلام بطرز جمهوری می باشد، که رضامندی اکثر اهل رای از افراد متدین و صالح ضروری است.

**تعریف جمهوریت**

این لفظ آن قدر عام شده که از زبان هر کس بیرون می شود، مگر عموما بلفظ دیموکراسی زیاد یاد می شود، که در اصل مرکب است از دو لفظ یونانی،

دیمو و کراسی که معنی دیمو مردم ورعیت است، و معنی کراسی طاقت. پس مفهوم مرکب این است که طاقت عوام و رعیت.

جمهوریت آن طرز حکومت را گفته می شود که اختیارات و طاقت کلی بدست عوام و رعیت باشد، خواه بالذات باشد و یا بواسطه و کلای شوری، مراد از اختیارات اینکه حکومت بدون رضایت عوام چیزی کرده نتواند، و رعیت هر چه بخواهند بذریعه انتخابات حکومت را تبدیل کردن بتوانند، مقرری بر منصبدار مطابق خواهش ایشان باشد، وقانون اساسی مملکت مطابق رای ایشان وضع شود، و از هر فرد حکومت باز پرس کردن بتوانند که تو سرمایه ملت را چه کردی؟ و برای ملت چه نفع رسانیده ای؟.

اقسام جمهوریت در دنیای دو قسم رایج است: (۱) صدارتی (۲) وفاقی.

وفاقی از اینکه قانون اساسی به اتفاق نماینده گان تمام ولایات یک کشور تصویب می شود، در اصل هر حکومت مرکب از سه اجزا است؛ (۱) مقننه یا مجلس قانون ساز که عبارت است از اراکین شورا، (۲) انتظامیه یعنی افراد حکومت که نظم و ونسق، تعمیل، تنفیذ ملی سپرد ایشان می باشد، (۳) عدلیه، یعنی شعبه قیام عدل و انصاف در کشور و فیصله های حقوق آن مفوض بایشان باشد، اگر در میان رعیت و حکومت تضاد واقع شود، هر دو به عدلیه رجوع میکنند، لهذا اختیارات عدلیه از همه زیاده تر باید بود.

در نظام صدارتی که تمام اختیارات نزد صدر مملکت میباشد، صدر را حقوق زیاده میرسد که شوری بدون توثیق آن هیچ فیصله کرده نمیتواند، در این طرز حکومت سربراه حکومت و مملکت را صدر می گوید.

در نظام وفاقی اختیارات اعلی بدست مقننه یعنی مجلس شوری میباشد که اگر خواهند وزیر اعظم را برطرف کرده میتوانند، در این نظام صدر برای نام میباشد.

**جمهوریت صحیح**

جمهوریت خواهی صدارتی باشد یا وفاقی، بردوقسم است:

(۱) اسلامی (۲) مغربی.

جمهوریت غربی را ماهرین قانون چنین تعریف میکند: یعنی حکومت عوام به ذریعه عوام به فایده و خواهش عوام.

در این جمهوریت حکومت و فرمانروایی رعیت معتبر است ، هر چیزی را که ایشان بخواهند بذریعه حکومت جایز قرار میدهند و چیزی که از هوا و هوس ایشان خلاف باشد، به آن بندش صادر می کنند، این است جمهوریت که امروز در شرق و غرب دنیا رایج است، وعلمبرداران آن خود را در مسند عدل و انصاف می بینند، در همین جمهوریت ها اگر شوری که مرتبه شارع را دارد قانون تجویز کند به نکاح مرد با مرد، یا تنسیخ کنند نکاح نسوان، حق دارند.

در جمهوریت اسلامی نه عوام حاکم است و نه شخصی منتخب کرده آن ها، بلکه از روی ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ الأنعام :٥٧، یعنی حاکم اعلی خدای متعال است.
مجلس شوری جمهوریت اسلامی راجع به طرز وطریقه تنفیذ احکام سماوی غور وفکر می کنند چنانچه مفکرین اسلامی جمهوریت اسلامی اسلام را چنین تعریف می کند؛ همین حکومت الهی بذریعه عوام ورعیت برای رضامندی خدای متعال، لهذا اگر دونیم ارب انسانان خط ارضی جمع شوند و فیصله کنند که شراب یا خنزیر حلال است، یا گاو حرام است، نه حرام حلال میشود و نه حلال حرام. این است اختیارات حکومت و جمهوریت اسلامی و آزادی جمهوریت غربی.[١]

## مغایرت کمونیزم و سوسیالیزم با اسلام

کمونیزم چیست ؟

نظام کمونیزم ضد تمام نظریات عقلی ، دینی و فطری است، لهذا مسلط کردن این بر باشنده گان یک مملکت یا بر افراد یک قوم جبرا و بذریعه فوج میشود، نه که بذریعه تبلیغ وتفهیم.

دلیل قوی بر این آنست که در دوره های گذشته کمونیزم و سوشلزم در کدام حصه زمین که نافذ شده است صرف بذریعه خانه جنگی و تشدد فوج سرخ

---

[١] . اسلام وسوشلیزم - مصنف شمس الحق افغانی : ص ٢٤

پوش بر آن خطه مسلط کرده شده است. برای تفصیل این مطلب به کتاب شمس الحق افغانی (اسلام و سوسیالزم) مراجعه شود.

در این جا به برخی از اصول کمونیزم اشاره می شود؛

(۱) انکار از خدا ، (۲) مذهب ، (۳) اخلاق ، (۴) آزادی انسان و ملکیت شخصی ، (۵) عصمت عودت.

**نخست انکار از خدا :**

مستر ازدیب در کتاب خود "what communism" (کمونیزم چیست) در صفحه ای ٨١٤ مینگارد که رکن کمونیزم بجز آن کس که اعلان دهریت و انکار خدا را در مجمع عام کند، دیگر هیچ نمیتواند شد.

انجلیز که از رفقای کارل مارکس و بانیان کمونیزم هست، می نویسد؛ که ما شاهان آسمان را از عرش گرفته زیر انداختیم، همچنان که پادشاهان زمین را از تخت پایان کردیم.[۱]

خیال پرستان ( یعنی قائلین بخد) در واقعات دنیا عقل کل ، یعنی خدا را حکمران میدانند، مگر حوادث، واقعات ومظاهر اشکال مختلفه ماده متحرک اند که به روح افاقی یعنی به خدا حاجت ندارند.[۲]

**مذهب:** اصول مذهب در نظر یک اشتراکیت پرست؛

۱. اواز بازگشت نظام غلامی زمانه های قدیم است.

۲. مذهب برای عوام بمنزله افیون (تریاک) است.

انجلیز مینوسد که مخالفت مذهب نزد ما یک امر فطری است.[۳]

---

[۱]. اشتراکیت واسلام - از مسعود ندوی : ص ۷۰

[۲]. فلسفه مارکس باب دوم : ص ۳۳

[۳]. اشتراکیت ومذهب : ص ۳۳

مارکس می گوید که مقصد ما پیش قدمی نموده، آزاد کردن ضمیر انسان است.[1]

انجلیز در کتاب خود ص ۱۵ اعلان می کند : مقصد اصلی ما این است که برای دور کردن فریب مذهبی و نجات دادن از آن یک حزب خلاف الوهیت در معرض وجود آید.[2]

**اخلاق :** در نظر اشتراکیت پرستان اخلاق کدام حقیقتی ندارد.

لینن می گوید که آن ضابطه که برای معاشره انسانی از هستی مافوق القدرة یعنی خدا گرفته شده است، نزد ما کدام قدر و منزلتی ندارد، چونکه این یک فریب است. بلکه اخلاق ما وابستهٔ تصادمات طبقاتی یعنی جنگانیدن امیر و غریب است و در این مفاد خود را مضمر میدانیم.

مارکس می گوید: که اخلاق ایجاد کرده خود انسان است، و زنده گی حقیقی انسان پرتو تعاون خواهشات آن است.

اخلاق اشتراکی وابسته بر فواید مادی است که در حصول آن دروغ ، دزدی، فریب و خیانت تماما جایز است.[3]

**ملکیت شخصی وآزادی:** مقصد سوشلیزم ختم نمودن زمین داران و مالکان شرکت های متعدد است و بعدًا حواله کردن هر چیز به یک زمیندار کلان و مالک شرکت بزرگ که آن حکومت کمونست و اشتراکیت خواه است.

مقصد دوم آن مقرر نمودن کار و بار است، به صورت اجتماعی برای مرد و زن.
و مقصد سوم حصول خوراک و پوشاک است، به ذریعه دیپو.[4]

---

[1] . سوشلیزم مارکس : ص ۹۲

[2] اشتراکیت و اسلام : ص ۷۰ را ملاحظه فرمایید
[3] . تمام این مضامین را در اشتراکیت و اخلاق ص۹۵و۹۹ باید دید
[4] . ملاحظه فرمایید: سوشلیزم مطبوع : سنه ۱۹٦۷

اکنون ظاهر و هویدا است که در این شرافت انسانی و آزادی آن سلب می شود، و انسان به منزله یک ماشین و آله دست کمونست میگردد، گویا اختیار سوشلیزم فروختن انسانیت ودست بردار شدن از شرافت آن است.

**عصمت:** هر مرد و زن از یک دیگر منفعت جنسی و شهوانی هر گاه که بخواهد حاصل کرده میتوانند؛ چونکه ازدواج همین را گویند.

در الفاظ و لغت اشتراکیت لفظ حرام زاده نیست بلکه حرام زاده از اولاد نکاحی و نسبی زیاد مقدس و محترم شمرده می شود، چونکه در این روح و اثر اشتراکیت موجود است.[1]

در کتاب کارل مارکس ص ۹۰٤ خود مارکس می گوید: که تعلقات ازدواجی خواهر و برادر کدام عیبی نیست، و نه در صحت کدام نقصان می رساند.[2]

از روی این اصول کشورهای کمونیست را تماما یک فاحشه خانه باید شمرد، لهذا دادن ممالک برای طوایف مختلفه کدام انتظام جداگانه نیست، در ص ۹۸ اشتراکیت واقعه سید مظفر الدین ایم دی ( فارغ صنف شانزدهم) درج است، وقتی که آن در مکتب حبیبیه معلم بود در سفارت خانه روس (شوروی) سید مظفر الدین را دعوت داد، هنگامیکه نامبرده در سفارت خانه روس داخل شد چند دختران دوشیزه آنرا استقبال نموده شراب پیش کردند، مرد موصوف از تناول شراب انکار کرد، بعدا که در مورد آن اختران پرسید که ایشان کی بودند؟ در جواب گفته شد که این ها دختران نوجوان مسلمانان ترکستانی روسی اند که به ذریعه طیاره برای ایفای خواهش عمله سفارت خانه آورده شده اند، تا مدت ۱۵ روز تمام عمله سفارت تسکین جنسی خود را از اینها تکمیل می کنند، بعد از ۱۵ روز اینها را واپس کرده دیگر دختران مسلمانان به همین طریقه می آورند، و این سلسله همیشه جاری است، یک رهنمایی بالشریک (رکن مجلس کمونیست) زمین داران را خطاب کرده می گوید : ما مواشی و حیوانات شما را گرفتم، اکنون میخواهم که زن و بچه شما را نیز مشرک کرده باخود متفق کنیم.[3]

---

[1] . اشتراکیت مذهب واخلاق : ص ۸۰ - ۸۹ را ملاحظه بایدکرد
[2] . کتاب مذکور: ص ۹۰
[3] . صبح سمرقند: ص۱۷۸

بنام محبت آزاد و در مقامات مختلفه باغها ساخته اند که درآنها به نام شبهای افریقا دختران را استعمال می کنند.

اخبار اشتراکی (پرودا) می نویسد : چقدر که شما از انسانیت خود دور شوید، به همان قدر اشتراکی می شوید.[1]

**نتایج این امور پنجگانه:**

۱. در وسط آسیا که اکثریت مسلمانان بود هیچ مسلمان باقی نماند.

۲. مساجد را اولا دفتر گاه حکومت کمونست ساختند و بعدا مکتب های که سبب الحاد بود در آن مساجد قائم نمودند.[2]

۳. ازدواجی کمیون یعنی اباحت مطلقه هر مرد با هر زن هر گاه که دلش بخواهد صحبت جنسی میتواند کرد، جلسه و انجمن برای این تحریک در مساجد منعقد می شد.[3]

٤. اختلاط جنسی مرد وزن بطور آزادانه رایج شد.[4]

٥. عقاید دینی را خرافات قرار دادند.

٦. مسلمانان پابند اسلام از رزق و روزی محروم کرده شدند.[5]

۷. در شهرهای جدید و قدیم تعمیر مساجد را متوقف کردند.

۸. حکومت روس در وسط آسیا تمام مدارس مذهبی را بسته کرد.

۹. در ستالین آباد یک مسجد هم نیست.[6]

۱۰. چهل در صد زنان را در کارهای سخت مقرر کردند.

---

[1]. اشتراکیت مذهب واخلاق : ص ۸۵ و۱۰۲

[2]. صبح سمرقند: ص ۲۵۱

[3]. ص: ۲٤۱

[4]. ص: ۲۸۷

[5]. ص: ۱۹۲

[6]. ص: ۲۳٤

۱۱. مسلمانان را بطور تحریک و تبلیغ از دین منحرف کردند.[1]

۱۲. باوجود تمام این واقعات مسلمانان را غیر از گرسنگی وفقر دیگر چیزی میسر نشد.

۱۳. خان و بیک (تاجر) را بیدریغ قتل کردند.[2]

ویب، در کتاب خود (اشتراکی روس) در صفحه ۱۱ می نویسد که برای تباه کردن مسلمانان ترکستان از قوت و زور آوری کار گرفتن نهایت ضروری است. امین باریوس در کتاب خود (روسی آسیا) در صفحه ۱۰٤۸ می نویسد که برای کمونست ساختن شهر بخارا این ضروری است که در پشت و پناه کمونست آینده مسلمانان ترکستان را فنا کرده شود و یا که تمام را نظر بند کرده شود، در حمایت اشتراکیت اگر جویهای خون بریزد هرگز پروا نکنید و هیچ چیز از آن دریغ مدارید. در اشاعت سه صدهزار یمنی و سی هزار مسلمانان مصری از دست خود مسلمانان بقتل رسیده اند.[3]

بطریق مشت نمونه خروار از تالیف سید شمس الحق افغانی اسلام و سوسیالیزم از صفحه ۷٦ تا صفحه ۸۰ گرفته شده است.

**د پاچا یا د امیر دندې**

امام ابو الحسن ماوردي ﷫ فرمايي : د پاچا یا د امیر دندې په لاندې توګه يادې شوي دي:

۱ ــ د دين ساتنه؛ يعنې د شريعت د ټينګو بنسټونو او د تېرو نېکانو خلکو يعنې د سلفو صالحينو د اجماع سره سم د دين ساتنه وکړي. که کوم څوک د اسلام په دين کې کوم بدعت او نوی کار لهٔ ځانه راوباسي يا د الحاد ، کفر او بې دينۍ لاره جوړه کړي، نو داسې کس ته دې حق خبره ښه روښه او څرګنده کړي او د شريعت په تګلاره يې روان کړي، تر څو په دين کې کوم زيان او

[1] . ص: ۱۸۱
[2] . مذهب و اخلاق : ص ۹۳
[3] . کتاب مصر و یمن: ص ٦ را ملاحظه باید نمود

خلل پيښ نهٔ شي، او امت د اسلام پهٔ دين باندې ولاړ، او له پېښې خوېيدنې څخه خوندي پاتې شي.

۲ ــ د يو له بل سره د شخړه کوونکو ترمنځ د دوسيو او مقدمو چارې د شريعت د احکامو سره سم يوه خوا کړي، څو په ملک ټول وکړي د عدل او انصاف په چاپېريال کې ژوند تېر کړي او کوم ځواکمن په کوم بې وسه او بې وزله باندې د ظلم او تېري لاس اوږد نهٔ کړي.

۳ ــ د خپلې خاورې ساتنه وکړي، د ملک په وېش کرښو يا سرحدونو باندې د ځواکونو داسې ټينګ ځای پرځای کېدل وکړي چې دښمن ته د لاس وهنې او يرغمل کولو جرأت پاتې نهٔ شي، او هيواد د دښمن له بريد څخه خوندي شي، او د هيواد په دننه کې د څارونکيو امنيتي پوليسو داسې انتظام وکړي چې ټول ملک په ډاډ سره ژوند تېر کړای شي او کاروبار وکړای شي، لهٔ غلو او لارشکوونکو څخه په امن او امان شي او د ځان او مال د لوټ له وېرې څخه پرته سفر وکړلای شي.

۴ ــ شرعي حدود ودروي او جاري يې کړي، تر څو هغه خبرې چې الله تعالی ورته حرامې کړي، کوم کس د هغو د کولو لاره غوره نهٔ کړای شي او ملک لهٔ غلا ، شراب خورۍ، بدکارۍ او داسې نورو جرمونو څخه ومنيځل شي او پاک شی.

۵ ــ د مسلمانانو لپاره د ديني زده کړو سماوی او انتظام وکړي، ځکه چې اصلي موخه او مقصد دين دی او پاچاهي د هغه د ساتنې لپاره ده، له دې امله په پاچا او امير باندې فرض او لازم دي چې هغه د ديني زده کړو او د تعليم زمينه برابره کړي، ترڅو دين خوندي شي. له تعليم او زده کړې پرته هېڅ علم ، ښوونه او روزنه خوندې نهٔ شي پاتې کېدلی. همدا راز د امر بالمعروف او نهي عن المنکر څانګه جوړه کړي ترڅو پاچاهي په معروفه او ښو کارونو سره ښايسته او منوره شي او له بدو او فاحشو کارونو او له منکراتو څخه پاکه شي. الله تعالی فرمايي: ﴿ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ﴾ الحج : ٤١

ژباړه : (دا هغه کسان دي چې که مونږ دوی ته په ځمکه کې قدرت ورکړو، نو لمونځ به قایم کړي، زکات به ورکړي، په ښو چارو به امر وکړي او له بديو څخه به منع وکړي)[1]

[1] . دستور الاسلام : مصنف مولانا محمد ادریس کاندهلوي : ۳۷ مخ

**د حکومت مذهب**

د حکومت مذهب هغه دی کوم چې د ملک د اکثریت مذهب دی، مثلا د افغانستان او پاکستان مذهب من حیث حکومت اسلام او اهل سنت والجماعت دی ولې چې په دې ملکونو کې اکثریت د اهل سنت والجماعت حنفي مذهب دی او خاص د اهل سنت د رایو په اکثریت سره دا ملکونه د وجود ډګر ته راوتلي دي، نو له دې امله د افغانستان او پاکستان مملکت اصلي حکمرانه ټولی د اهل سنت والجماعت ټولی دی او نور ټولي په اقلیت کې دي.

**د ادارو وېش**

ولس مشر په خپل ځان کې کمزوری وي، دا ناشونې ده چې په یوازې سر دې د ټولو ولسونو لیډل کتل وکړای شي او له دښمنانو یې ساتنه وکړای شي، او پر یو بل له ظلم او تېري څخه یې بند کړای شي او د یو مال او ځان او اسباب د بل له لاس وروړلو څخه خوندي کړای شي. له دې امله له ولس مشر سره مرستې ته اړتیا ده چې د یو چا په مرسته دا حکومت وچلوي.

د حکومت اړتیاوې بېلابېلې دي له دې امله یې د مرستې ډولونه هم سره جلا دي. په دې بنا باید په حکومت کې ډول ډول ادارې او څانګې جوړې کړای شي څو د دې په مرسته د حکومت ټولې اړتیاوې بشپړې کړای شي. د بېلګې په توګه د پوځ د روزنې اداره، د پولیسو د روزنې څانګه، د پوست څانګه ، د محصولاتو اداره ، د قضا او عدالت شعبه، د افتاء اداره او نور د داسې ادارو جوړول د حکومت لپاره اړین دي. خو چې د ولسونو بشپړه څارنه وکړای شي او د شریعت احکام په ټول ملک کې پلي کړای شي.

له اسلام څخه وړاندې حکومتونو کې هم د دندو او ادارو وېش و، اسلام دغه دندې او ادارې په خپل ځای پرېښودې او د هغو مفاسد یې اصلاح او تېروتنې یې سمې کړې، د جاهلیت د وخت امریت او استبداد یې په جمهوریت او شوارئیت سره واړوۀ او د الهي قانون او اسماني شریعت ډیوه یې په لاس کې ورکړه او پاچا او فقیر یې په یوه برستن کې راغونډ کړل. رسول الله ﷺ په دیني او دنیوي کارونو کې د خیر او اصلاح له مخې له بېلابېلو صحابه کرامو څخه کار اخستی، دا ټول د دندو او ادارو د وېش خواته اشاره ده. خلاصه د خبرې دا چې د حکومت چارې په مختلفو قسمونو د دیني او دنیوي اړتیاوو

باندې مشتملې دي، نو له دې امله اړينه ده چې د حکومت چارې په مختلفو ادارو هم وويشل شي.[1]

### عدالت (محکمه)

عدليه محکمه له شرعي عدالت څخه مراد دی چې د قضا محکمه هم په کې داخله ده او له محکمې سره د دارالافتاء اړتيا هم شته. د اسلامي حکومت دنده ده چې په کومو علماء کرامو کې دفتوی ورکولو اهليت او صلاحيت وي هغه دې د مفتيانو په توګه وټاکي ترڅو چې خلک له حلالو او حرامو څخه خبره کړي. او د خلکو د خپل منځي دښمنۍ او جګړې د فيصله کولو لپاره قاضي وګماري. د قضاء شرطونه او د هغې ادبونه او د قاضي اختيارات دا ټولې خبرې د فقهې په کتابونو کې د ځاني او مالي تېريو او د ظلم احکام په بشپړه توګه بيان شوي چې د عدل او انصاف په تله کې داسې سم تلل شوي چې د نړۍ د هېڅ پرمختللي حکومت په لاس کې هم د داسې عادلانه او حکيمانه قوانينو نوم او نښه نشته. د محکمې له ادارې څخه په هيواد کې د عدل او انصاف خپرول مراد دي ځکه چې عدل او انصاف د حکومت روح دی.

### د ښوونې او روزنې اداره

د ښوونې او روزنې له ادارې سره د دعوت او تبليغ، امر بالمعروف او نهي عن المنکر او د إفتاء اداره هم ځايېږي. د دې ادارې موخه د ديني زده کړو جوړښت دی کوم چې د نبوي بعثت اصلي موخه ده. الله ﷻ فرمايي: ﴿هُوَ الَّذِىْ بَعَثَ فِى الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ الجمعة : ۲

ژباړه : (الله تعالی هغه ذات دی چې په اميانو او ناپوهانو کې يې پخپله له همغو څخه پيغمبر راپاڅوۀ، چې هغو ته د دغه (قرآن) آيتونه لولي، د هغو نفسونه پاک کړي او هغو ته د کتاب او حکمت ښوونه وکړي).

[1] . دستور الاسلام : ۱۰۷- ۱۰۹ مخ

**پوځي اداره**
د دې ادارې بشپړ تفصيل د فقهاء کرامو په کتاب السير او کتاب الجهاد کې لاس ته راتلای شي، او له دې ادارې څخه د کفارو سرټکونه او د هغې د احکامو بيان مراد دی.

**د مالي چارو اداره**
چې د بيت المال چارې، د عشر، خراج او جزيې د ترلاسه کولو او د هغې د لګولو چارې په کې داخلې دي.

**د عامه پرمختګ چارې**
چې د پلونو او سړکونو جوړول او بيا رغول په کې داخل دي.

**د عامه امن چارې**
چې د ملک دننه ټولې د امنيت، او د سوکالۍ لارې چارې، او له غلو، او نورو بدکارو څخه د خلکو د خوندي ساتلو په پار د حدودو او تعزيرونو پلي کول په کې داخل دي.

**بهرنۍ چارې**
چې په کې له نورو قومونو او هيوادونو سره د جنګ جګړې، سولې او د تړونونو مسئلې داخلې دي.

**استخباراتي يا څارګره اداره**
دا د تفتيش او خفيه پوليسو اداره ده، چې د رسول الله ﷺ له وخت څخه يې ثبوت شتون لري. رسول الله ﷺ به د کافرانو د څارګرۍ او جاسوسۍ لپاره له صحابه کرامو څخه يو څوک لېږدول. او داسې نورو مختلفو ادارو ته حکومت اړتيا لري چې د هغو څخه ؛ د احتساب او عامه نګرانۍ اداره، د شکاياتو اداره، د سر شمېرنې اداره، د مخابراتو اداره، د مساحت يا کاردستر اداره، د کرهنې او مالدارۍ اداره، د سکې جوړونې اداره ، د هوايي ځواک اداره ده.

**د کورنيو چارو وزارت**
د رسالت طيبه او خلافت راشده په وخت کې د نن سبا په ډول د دغو ادارو لپاره جلا دفترونه نهٔ وو، او نه هم د هغو دفترونو په دروازو باندې کومې

لوحې لګولې شوې وې. په ساده ډول دا ټولې اداري کارکونې وې او بشپړ حقيقت وۀ. اوس مهال يې ظاهري شکل شتون لري خو حقيقت يې هېڅ دی، پخوا کارونه په ښه توګه ترسره کېدل خو نوم يې نه وۀ، او اوس مهال معامله برعکس ده چې نوم يې زيات دی خو کارونه تش د نامه لپاره دي.

**له لنډيز څخه وروسته**

لۀ دې لنديز څخه وروسته دا پکار ده چې د يو شمېر ادارو او څانګو په اړه څۀ ناڅۀ تفصيل وکړای چې ترڅو يې شرعي ليد لوری څرګند شي او لۀ اوسني وخت څخه يې توپير ښکاره شي.

**د ښوونې او روزنې څانګه**

د اسلامي حکومت په ټولو څانګو او ادارو کې د ښوونې او روزنې اداره تر ټولو لوړه او مهمه اداره ده، ځکه چې ديني زده‌کړه د نبوت او رسالت له لومړيو موخو او مقاصدو څخه ده، لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿هُوَ الَّذِیْ بَعَثَ فِی الْاُمِّیّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ یَتْلُوْا عَلَیْهِمْ اٰیٰتِهٖ وَیُزَكِّیْهِمْ وَیُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ﴾ الجمعة : ٢

ژباړه: (الله تعالی هغه ذات دی چې په اُميانو ناپوهانو کې يې پيغمبر په خپله له همغوی څخه راپاڅوۀ، چې هغو ته ددغه (قرآن) آيتونه لولي، او دهغو ژوند سپېڅلی کوي؛ او هغو ته د کتاب او حکمت ښوونه کوي).

له دې آيتونو څخه روښانه کېږي چې د نبوي بعثت لومړنی مقصد او مرام د الله تعالی د کتاب ښوول او حکمت يعنې د شريعت تعليم دی، دا خو ديني مدرسې شوې.

دويم مقصد د اخلاقو تزکيه او د اعمالو سمون او اصلاح ده، دا هم خانقاوې دي، اولياء کرام د خپلو صحبتونو په فيض او برکت سره د مسلمانانو اخلاق او عملونه اصلاح کړي دي. او علماء عظامو په درس او تدريس سره د تعليم الکتاب والحکمة دنده ترسره کړې ده، او د دې لپاره يې ديني مدرسې جوړې کړي دي.

د اسلامي حکومت لومړنۍ دنده دا ده چې د ديني زده کړې انتظام وکړي، او په هر ښار کې يوه يا دوه لويې مدرسې د دين د زده کړې لپاره ودانې کړي

او د مدرسانو انتظام يې وکړي، او د ديني علومو چې څومره کتابونه لاس ته راتلای شي هغه راټول او غونډ کړي.

د اسلام ساتنه د اسلامي حکومت لومړنی دنده ده او ښرګنده ده چې داسلام بقا په دې باندې موقوفه ده چې دهغه علم پاتې وي. هېڅ کوم دين او مذهب له خپل علم څخه پرته نهٔ شي پاتې کېدای. د بېلګې په توګه د ولس جوړتيا او روغتيا ته پاملرنه ټول حکومتونه خپله دنده بولي، او ښکاره ده چې ترڅو طبي پوهنځۍ او فاکولتې په پښو نهٔ وي درېدلې نو طبيب او ډاکټر موندل ناشونې دي. همدا ډول چې ديني مدرسې نهٔ وي ترهغو پورې د دين پاتې کېدل ناشونې خبره ده، د دين ساتنه او بقا له اسلامي مدرسو څخه پرته ممکنه نه ده. له همدې امله داسلامي مدرسو لګښتونه هم د اسلامي حکومت په ذمه دي.

د دين ښوونه د نبوي بعثت لومړنی مقصد دی، او دا خدمت رسول الله ﷺ په ښه توګه سرته ورسوهٔ او لاربښوونه يې وفرمايله : (**وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا** ).[1]

ژباړه : له دې پرته بل څهٔ نشته چې زه يو ښوونکی راليږل شوی يم.

او ډېر صحابه کرام ﷺ يې ښوونکي جوړ کړل، او نور کليو او باندو ته يې وليږل. تر کومې چې رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې اوسېدهٔ نو چې په ده مبارک باندې به د قرآن کريم کومه برخه نازلېده، هغه به يې صحابه کرامو ته په ياده زده کوله او د هغه له ترجمې او مفهومه به يې خبرول.

او کله چې مدينې منورې ته اسلام ورسېد نو دهٔ ﷺ همالته د قرآن کريم د ښوونې او زده کړې انتظام وکړ. سيدنا مصعب بن عُمير او سيدنا عبد الله بن ام مکتوم رضي الله عنهما مدينې منورې ته ورسېدل خلکو ته يې د قرآن کريم زده او تعليم پيل کړ. (مسند احمد : ۲ ټوک ۲۹۱ مخ)

رسول الله ﷺ چې کله په هجرت کولو سره مدينې منورې ته تشريف يوړ، نو يې له نبوي مسجد سره نښل شوې يوه صفه يعنې (سيوری لرونکی تالار) ودان کړ چېرې به چې د قرآن کريم زده کړه ورکېده، او رسول الله ﷺ به په خپله صحابه کرامو ته تعليم ورکاو.

[1] . سنن ابن ماجة :۱ ټوک ۱۵۵ مخ

حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه فرمايي : ما له اصحاب صفه څخه ځو تنو ته د ليک لوست د زده کړې او د قرآن کريم تعليم ورکړی دی.[1]

له څۀ مودې وروسته کله چې حکومت جوړ کړای شو نو رسول الله ﷺ لور په لور مبلغين او عاملان وټاکل او ويې لېږدول ، د دوی لومړنی دنده د قرآن او حديث ښوونه وه. معاذ بن جبل رضي الله عنه چې کله رسول الله ﷺ د يمن د يوې سيمې د قاضي په توګه ولېږداوۀ نو يې ورته حکم وکړ چې د هغه ځای خلکو ته د قرآن کريم او د اسلام د احکامو ښوونه ورکوه.[2]

د سيدنا صديق اکبر ﷛ د خلافت په دوره کې هم د ديني زده کړې لړۍ روانه وه، او د قرآن کريم له تعليم سره سم د رسول الله ﷺ د ارشاداتو او احکامو هم تعليم ورکول پيل شو.

بيا کله چې سيدنا فاروق اعظم ﷛ د خلافت ښايست شو نو په حجاز، شام ، عراق او مصر کې يې د اسلامي او د ديني احکامو د زده کړې لپاره حلقې او درس ځايونه جوړ کړل. حضرت عباده بن صامت ، معاذ بن جبل او ابو درداء ﷰ يې په شام او فلسطين کې وټاکل د دې لپاره خلکو ته د قرآن کريم تعليم ورکړي.

او سيدنا عبد الله او سيدنا عبد الرشيد بن مسعود ﷠ يې د صحابه کرامو له يوې ډلې سره کوفې ته روان کړل، او سيدنا معقل بن يسار او سيدنا عمران بن حصين ﷠ يې بصرې ته روان کړل او خلکو ته يې تاکيد وکړ چې له دوی څخه د قرآن کريم زده کړه او حديثو زده کړه وکړي. نو په دې باب مدينې منورې مرکزي حيثيت درلود، له دې امله خاص په مسجد نبوي کې د حضرت جابر بن عبد الله بن عباس ﷰ د درس حلقه جوړه شوه.

بيا له فاروقي دورې څخه وروسته د سيدنا حضرت عثمان بن عفان ﷛ او حضرت علي ﷛ په دوره کې د دين زده کړې ته نوره پراختيا ورکړل شوه چې له هغو ورسته نورو خليفه ګانو هم د دهغوی تګلاره خپله کړه او د هر

[1] . ابو داود کتاب البيوع، باب کسب العلم
[2] . الاستيعاب

مسلمان پاچا د حکومت په دوره کې د دیني زده کړې ځانګړی اهمتام کېدهٔ ، تر دولسمې پېړۍ پورې اسلامي حکومتونه او د اسلام پاچاهان د دیني زده کړې لور ته پوره پاملرنه وه، او دیني درس به یې کاوهٔ، او د خانقاو لپاره به یې زیاتې زیاتې مرستې هم ورکولې، او وقفونه یې هم ورته کول. د رسالت له دورې څخه بیا تر دولسمې پېړۍ پورې ټول اسلامي حکومتونه د مسلمانانو د زده کړې ذمه واري کوله، او په هېڅ دوره کې هېڅ اسلامي حکومت هېڅ یوهٔ مسلمان څخه پر زده کړه باندې کوم فیس او معاوضه نه اخستله. په وروستیو کې د دیني زده کړې لورې ته په پاملرنه کې یو څهٔ اندازه سستي رامنځته کېدل پیل شول.

کله چې د انګریزانو د دورې تورتم پیل شو نو اسلامي حکومتونه له دیني زده کړو فارغ الذمه شول. له کومه وخته چې انګریزي زده کړې د پرمختګ دوره پیل شوه له هغه څخه راپدېخوا اسلامي حکومتونه د دیني زده کړو له ذمه وارۍ څخه ګواکې خلاص شوي دي او په ټول توان سره د انګریزي زده کړې لورې ته متوجه شوي دي او په ملیاردونو پیسې په انګریزي زده کړې باندې لګوي، او د دې په تله کې خاص د دیني زده کړې لپاره د هغه مبلغ څلوېښتمه برخه هم نشته کوم چې په کال کې په لوبو او تماشو باندې لګول کیږي. افسوس چې اسلامي حکومتونو د خپل دین علم له پام څخه وغورځاوهٔ، او د اغیارو بلکې د دښمنانو د علم او فن کفیل او ذمه وار جوړ شول. او د لوېدیځو هیوادونو خو له اسلام او اسلامي حکومتونو سره دښمني د رڼا ورځ په څېر څرګنده ده.[1]

**مدرسې ولې جوړې شوې او ګټې یې څه وې؟**

له دولسمې پېړۍ وروسته چې کله انګریزان په اسلامي حکومتونو تاثیز ګذار شول او اسلامي حکومتونه له دیني تعلیم څخه بری الذمه شول نو په دې وخت کې د ایماني غیرت په مقتضا دیني علماو ددې لپاره چې دیني زده کړې خوندې وساتل شي مدرسې جوړې کړې، او د خوښو مسلمانانو په مرستې سره یې د هغو لګښتونه بشپړ کړل، او کوي یې. دیني عالمانو د مجبوریت له مخې په نا خوښ زړه دا کار له دې امله وکړ چې په یوه ډول دیني علم خوند وساتل شي. که چېرې دا دیني مدرسې نه وای جوړې شوې نو اسلام به د جاهلیت لورې

---

[1]. دستور الاسلام : ۱۱۴ مخ

ته ګرځېدلی وای لکه څرنګه چې اوس د انګلیسي زده کړې د ډېروالي له امله د نصرانیت لورې ته د تلو په حال کې دی او د مسلمانانو اولاد کله چې لس کاله وروسته له پوهنتون څخه سند ترلاسه کړي او کور ته راځي نو د دهٔ نوم که څهٔ هم اسلامي وي خو زړه او دماغ یې مغربي جوړېږي. د لویدیځې معاشرې له عظمت او محبت څخه یې زړه ډک وي چې د هغې په مقابل کې ورته د اسلام ساده معاشره او ټولنه خواره په نظر ورځي، د داسې خلکو اسلام قومي وي شرعي نهٔ وي.

## د انګلیسي زده کړې شرعي حکم

انګلیسي په خپل ځان کې یوه ژبه ده او د عرف او شهرت په اعتبار سره د یو ځانګړي نصاب نوم دی چې د مختلفو زده کړو او فنونو لرونکې ده. شریعت د هېڅ ژبې د زده کړې منع نهٔ ده کړې، خو که له کوم روا کار سره داسې شیان ګډ شي چې شرعا حرام او منع وي، نو دا مباح شی هم د هغو بدیو او مفاسدو له کبله چې پرې ګډ شوي ، حرام لغیره جوړېږي. هر کله چې د مسلمان اسلامي عقیدې ته په کې زیان ورسېږي او ټول صورت او سیرت یې په انګریزي کلتور ککړ شي، له دین او شریعت څخه یې نفرت پیدا شي، او په زړه کې یې د لوېدیځو او غیر اسلامي هیوادونو کلتور ځای ونیسي او له اسلام څخه ووځي، نو په دې صورت کې د انګلیسي ژبې زده کول بیا له شکه وتلی ناروا او حرام دی. او که له دغو مفاسد څخه خالي و نو بیا یې زده کول ناروا نهٔ دي. لکه څنګه چې د هندي، چینایي، او داسې نورو اروپایي ژبو زده کول په ځان کې روا دي ، خو که لهٔ زده کړو څخه یې په اسلامي عقایدو کې کومه ګډوډي راشي او یو مسلمان د اسلامي چلند پر ځای غیر اسلامي چلند غوره کړي، نو داسې زده کړې ناروا او حرامې دي.

## حکومت باید د تبلیغ څانګه ولري

دیني تبلیغ هم د دیني تعلیم یوه برخه ده او د اسلامي حکومت له دندو څخه ده، د اسلام تبلیغ او د توحید پیغام او د رسالت پیغام د دین اهمه فریضه ده چې له دې څخه پرته د دین بقا او ساتنه ناشونې ده نن چې د اسلام د دین کوم تعلیم له ختیځ څخه تر لوېدیځه پورې خپرېږي دا هم د دین د تبلیغ برکت دی.

د انګریز له اقتدار څخه وروسته ټولو عیسایي حکومتونو د عیسائیت په خپرولو کې یوه دقیقه هم ځنډ نهٔ دي کړی، په هندوستان کې د اسلامي حکومت

له زوال څخه وروسته انګریزي اقتدار راغی، انګریزي حکومت څرنګه چې د مذهب له مخې عیسایي و، له دې امله هغهٔ له بېلابېلو لارو څخه د عیسائیت په تبلیغ کې هېڅ ګړۍ خالي نه ده پرېښې. خو د دین په عالمانو یې هم بندیز ونه لګوهٔ، د دین علماو د اسلام د تبلیغ په باب کې چپ پاتې نه شول بلکې د تقریر او تحریر له لارې یې د عیسائیت مذهب رد کړ، بلکې له ګڼو ستنزو سره سره د دیني علماو تله درنه وخته او انګریزي حکومت د اسلام په تبلیغ او د عیسائیت په رد باندې کومه پابندي رانه وسته، چې په پایله کې الحمد لله په هندوستان کې د اسلام دین خوندي پاتې شو او په لکونو کافران د اسلام په کړۍ کې داخل شول، او مسلمانان شول. که چېرې دیني علماو په هندوستان کې دیني مدرسې نه وای جوړې کړې له عیسایانو سره یې مناظرې نه وای کړې او د عیسائیت رد یې نه وای کړی نو څرګنده وه چې بیا به د اسلام څهٔ حال وهٔ.

کله چې اسلامي حکومت له منځه لاړ، د انګریزانو د حکومت دوره پیل شوه نو سرسید احمد خان د علي ګړ کالج (پوهنځي) جوړه کړه ترڅو مسلمانان انګریزي ژبه زده کړي او د انګریزانو په حکومت کې دندې ترسره کړي او لویې چوکۍ لاسته راوړي. او حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي ﷀ دیني زده کړې او تعلیم لپاره پهٔ دیوبند کې دار العلوم جوړ کړ او دې ته نږدې په سهارنپور کې حضرت مولانا محمد مظهر نانوتوي ﷀ د مظهر العلوم په نامه یوه دیني مدرسه جوړه کړه.

دغو حضراتو علماو له دنیا څخه نظر قطع کړ او د حکومت د څوکیو خیال یې له زړه څخه لرې کړ او دیني تعلیم یې د ژوند موخه وګرځوله، او د دین د ساتنې لپاره یې دیني مدرسې جوړې کړې.

په دې توګه د دیني تعلیم او تبلیغ پیل وشو، او د هندوستان هرې سیمې ته د دین علم ورسېدهٔ، او اسلامي ټولنې امتیاز لرونکی او برې موندونکی مقام ترلاسه کړ، او وار دې ته ورسېد چې د سلو کلونو د خپل دین او اسلامي ټولنې د خوندي ساتنې لپاره یې د پاکستان په نوم یوه پراخه سیمه وګټله.

خدای مکړه که په هندوستان کې علماو د دین تبلیغ نه وای کړی او نه یې هم دیني مدرسې جوړې کړی وای، او یوازې د انګریزي ښوونې او زده کړې

پوهنځی او ښوونځی وای، نو دا وخت به ټول هندوستان د لوېديځې نړۍ په رنګ سره لړلی وای او د اسلامي حکومت د جوړېدو به هېڅ نښه او نوم نه وای.

له سلو کالو څخه وروسته چې کله پاکستان جوړ شو نو د انګريزي تعليم يافته طبقي لاس ته انتقال شو کوم چې له دين څخه ناخبره، او په ټولو اسلامي هيوادونو کې دا طبقه د قدرت له مخې برلاسې وه.

دغې طبقې ته له اروپا سره نڅا خوښه ده او د اروپا پيسې ورته د وياړ او ناز توښه ده، او د هغوی هره نظريه او مشوره د دوی په آند له وحې سره برابره ده، او د شريعت چې کومه مسئله د اروپا له تهذيب او پرمختګ سره په ټکر کې وي هغه د عقل خلاف ده، د لوېديځې نړۍ اخلاق خپلول او په هغه غير اسلامي کړنو عمل کول د دې طبقې په وړاندې د عزت نښه ده، او د ديني علم زده کول ، په شريعت باندې عمل کول، اسلامي اخلاق په ځان کې راوستل او په شرعي بڼه ځان جوړول دې طبقې ته د زلت ، خوارۍ او حقارت نښه، په دې معنی چې کوم خلک په دين عمل کوي او په شرعي بڼه يې ځان جوړ کړی او د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ په لاره روان شوي وي، د دې طبقې په نظر کې حقير، خوار او له پرمختګه وروسته پاتې خلک دي، العياذ بالله.

د نن سبا زيات شمېر حاکمان او اميران له ديني احکامو څخه ناخبره دي، د دغې حاکمې طبقې من حيث الحکومت د اسلام د تبليغ لور ته هېڅ پاملرنه نشته، او ديني علماو ته چې د انګريز په حکومت کې کومه ازادي ورکړل شوې وه هغه د دغو تش په نامه مسلمانانو د قدرت په دور کې نۀ ده پاتې، د دغو متمدنو کسانو په وړاندې هر باطل او هرې بې حيايۍ ته د تبليغ حق شته خو ديني عالم ته د هغې د رد حق نشته.

د کوم ملحد او زنديق، او کوم مرتد او کوم مسيلمة الکذاب، او د کوم اسود عنسي چې څۀ زړه غواړي هغه دې وايي، خو که کوم ديني عالم د دغې الحاد او زنديقت رد کوي د دغه رد نوم تفرقه اندازي ده او د دغه عالم ويناوې او د شرعي احکامو بيانولو نوم سختدريزي او شرپسندي ده، چې د دوی په وړاندې د فتنې او فساد مرادف او په يو معنی دی.

**د ډلبازي او تفرقه اندازي حقيقت**

په دې پوهېدل پکار دي چې ډلبازي او تفرق له حق څخه د جلا کېدو په معنی ده، او اتفاق او يووالی له حق سره د متفق کېدو او يوځای کېدو معنی ده، الله تعالی د دې لار ښوونه کړې چې ﴿وَاعۡتَصِمُوا بِحَبۡلِ اللّٰهِ جَمِيعًا وَّلَا تَفَرَّقُوا﴾ آل عمران: ۱۰۳. (ټول يوځای شئ، د الله رسی کلکه ونيسئ، او تيت او پرک کېږئ مه).

مطلب دا دی چې ټول يو لاس شئ، د حق رسی ټينګه ونيسئ او له حق څخه په هېڅ حال کې جلا نهٔ شئ. همدا راز د نړۍ د هر حکومت يووالی لازم او فرضي ګڼي، د دې مطلب دا دی چې د حکومت له قانون سره اتفاق وکړئ او له حکومت سره مخالفت مهٔ کوئ.

**اتحاد اسلامی**

پنجاه رياست امريکا در يک وحدت است، تقريبا ۲۲ رياست روس (شوروی) بشکل يک اتحاد است، دولت مشترک برطانيه تقريبا بر هشت مملکت مشتمل يک وحدت گشته است، با وجوديکه در ميان اينها اختلاف مذهبی، نسلی و جغرافيايی موجود است. آيا مسلمانان آسيا وافريقا که بر چندين رياست های کوچک وبزرگ مشتمل اند از اينها يک اتحاد اسلامی ساخته نه ميشود؟ اگر اين اتحاد اسلامی قايم شود برای امن عالم يک طاقت بی مثال خواهد بود، و تمام مسايل عالم اسلام بدون جنگ وخونريزی حل خواهد شد، آن اسباب که برای قوت ضروری است سوای همين اتحاد اسلامی مجوزه ديگر هيچ حکومت دنيا را حاصل نيست صرف انتظار وحدت وتنظيم است که بوقوع آيد.

**قوت عددی مسلمانان**

از همه بيشتر فوقيت عددی است ، که مسلمانان را تا هنوز صحيح عدد خود معلوم نبود چونکه اعداد و شمار را به ذريعه اروپايی ها ميکردند که ايشان تامی توانستند مسلمانان را کم نشان دهی می کردند، تا مبادا مسلمانان از اکثريت خود واقف گشته بيدار شوند، از همه قبل شکيب ارسلان کوشش کرد که صحيح عدد مسلمانان را معلوم کند. و عبدالله مسدوسی در مذاهب عالم نيز تعداد مسلمانان را درج کرده است، مطابق اطلاع اخبار کوهستانی مندرجه ۲۰ دسمبر ۱۹۷۵ تعداد مسلمانان نهصد و پنجاه ميليون است، و اصلی تعداد

عیسایان مطابق تحریر مذاهب عالم پنج صد و بیست میلیون است، کینوشیان که مذهب حکمرانان چین است تعدد ایشان سیصد و شصت میلیون است، و شنتو پرستان که مذهب حمرانان جاپان است پنجاه میلیون است، وتعداد پیروان بودا صد و پنجاه میلیون است، اصلی تعداد هندوان دو صد و هشتاد میلیون و تعداد سکان شش میلیون و سیصد هزار است، وتعداد یهود تمام عالم پانزده میلیون است. ( مذاهب عالم از مسدوسی) از این موازنه به شما معلوم شده باشد که قوت عددی مسلمانان چه قدر است؟

**قوت پترول و تیل**

۷۵ فیصد تیل تمام دنیا از شرق اوسط بدست می آید که از جمله ممالک اسلامی است، اگر اروپا و امریکا و کشور های دیگر داده نشود ایشان نه جنگ کرده میتوانند و نه شرکت های خود را جاری کردن، لهذا نظر همگی در بالای شرق اوسط است، و برای همین اسرائیل را اله کار خود ساخته اند.

**فوقیت به لحاظ رقبه**

چیز سوم رقبه زمین تمام دنیا سیصد و سی میلیون مربع میل است که بر ٤۳ در صد آن مسلمانان قابض اند، و در باقی اقوام دیگر شریک اند. چیزی چهارم ربر است که برای مواصلات نهایت ضروری است، حاصلات ربر از تمام دنیا در اندونیزیا ومالیزیا زیاد است که از جمله کشورهای اسلامی است.[۱]

**د وکیلانو دوه فریضې دي؛**

یو د حکومت د قانون ساتنه او د هغه تایید. دویمه فریضه یې دا ده چې د قانون څخه مخالفه خبره باطله کړي او هغه رد کړي.

همدا ډول د شریعت د قانون په اړه په عالمانو باندې دوه شیان فرض دي؛ یو د حق اثبات او دویم د باطل تردید دی. د ټولې نړۍ هوښیاران د دې خبرې اعتراف کوي چې د وکیل یوه د قانون خلاف خبره ردول، فتنه او فساد نه دی بلکې د حکومت د قانون حمایت او ساتنه ده. دې ته ورته د دین په باب کې

[۱] . اسلام وسوشلیزم از عنوان اتحاد اسلامی تا صفحه ۱۸۳ از مصنفات سید شمس الحق افغانی

چې یو عالم باطله او غلطه خبره رد کړي دا فتنه او فساد نه دی، بلکې د دین په خلاف شونډې خورول او د شریعت د منل شویو خبرو مخالفت فساد او فتنه ده. د خدایي احکامو بیان او اعلان او د هغو تبلیغ د علماو دنده او فریضه ده . چې د دې احکامو د اشاعت او خپراوي مخنیوی له الله تعالی او د هغهٔ رسول ﷺ څخه په ښکاره توګه بغاوت دی. او که د اسلام او مسلمانی سربېره داسې کار وکړي نو هغه بیا منافقت دی، چې دعوه د اسلام کوي او په عمل کې د هغې مخالفت او مخنیوی وکړي. په دغه برخه کې پرمختللي حکومتونو د ژب بندۍ قانون جوړ کړی، چې دواړه خواوې له خبرو څخه بندې کړي. نو پوهېدل پکار دي چې دواړه مخالف اړخونه له خبرو بندول دا عادل سیاست نه دی بلکې ظالم سیاست دی، چې حق او باطل، معروف او منکر په یو بام باندې درول او په یوه سطحه هم وزن کول دي. که باطل د خبرو کولو حق لري؛ نو حق ته هم د ویلو حق شته او مظلوم ته له ظالم څخه د انتقام او غچ اخستلو حق شته.

د حیرانتیا ځای دی چې کله باطل د حق په خلاف سر راپورته کړي نو د حکومت واکمنان هغې لورې ته هېڅ تعرض نه کوي، خو چې کله هم حق د باطل په مقابله کې ژبه پرانیزي؛ نو هغه فتنه، فساد او انتشار بلل کېږي، او ژبه یې وربندېږي. کوم کس چې د حکومت په قانون باندې نکته چیني وکړي نو د حکومت د وکیلانو فرض دی چې د هغهٔ ځواب ورکړي. همدا ډول که کوم ملحد او کافر د شریعت په قانون باندې نکته چیني وکړي نو د علماو دا فرض دی چې د هغه رد وکړي او دمباحثې میدان ته یې راوبلي ترڅو چې اعلانا حق ورته روښانه شي.

بله د حیرانتیا خبره دا ده چې یو وزیر ته دا حق ورکول کېږي چې هغه خپل یو مخالف ته د مناظرې اخطار ورکړي خو یو عالم ته دا حق نشته چې هغه کوم عیسایي ، قادیاني یا یو ملحد او زندیق ته د مناظرې بلنه ورکړي، او که یې بلنه ورکړه نو دې ته بیا تفرقه اندازي وایي، او دا په قانون کې جرم ګڼل کېږي. او که دا کار وزیر وکړ نو ورته د حکومت تایید او پلوي ویل کېږي.

په اسلامي هیوادونو کې د عیسایانو لپاره د خپل تبلیغي مېشن او د یو ښوونځی یا پوهنځی پرانستلو لپاره په ډېره اسانی سره د ځمکې سورۀوې او اوږدې سیمې په لاس ورځي، او د مسلمانانو لپاره د مسجد او مدرسې جوړولو په

غرض دوه درې جريبه زمکه په سختو ستونزو ګاللو سره لاسته ورځې. د ټولې نړۍ په وړاندې د لوېديځو له اسلام سره دښمني تر روځ روښانه ده خو بيا هم يوه تعليم يافته ډله لوېديځتوب خوښوي او مولوي توب او ملايي توب ورته منفور او معيوب ښکاري.

له همدې امله د اسلامي حکومتونو دنده ده چې هغه د اسلام د تبليغ لوري ته پاملرنه وکړي، که نه نو خدای مهٔ کړه په اسلامي هيوادنو کې به دغه ډول د عيسائيت په شمېره کې زياتوالی ورځ تر بلې ګړندی کېږي چې د اسلامي حکومت د سلامتۍ لپاره لويه خطره ده.

**د علمي ذخيرو او زېرمو ساتنه او خپرونه د اسلامي حکومت دنده ده**

دا فريضه هم د اسلامي حکومت ده چې د علمي زېرمو ساتنه او خپرونه وکړي او د تېرو نېکانو او روزونکو علماو او په علم کې د پخو کسانو بې ساري ليکل شوي آثار او تصنيفونه چې په بېلابېلو کليو او بانډو کې د هېرونې ګوښو کې پراته وي هغه راټول کړي او خپارهٔ يې کړي، او د هيواد له ګوښې ګوښې څخه نايابې قلمي زېرمې راوباسي، اصل او نقل يې په لوی کتابتون کې راغونډ کړې ترڅو دا ورکې ذخيرې په يو ځای کې وساتل شي. لکه د لوېديځې نړۍ ډېرو هيوادونو په سلګونو عام لوست ځايونه جوړ کړي چې خپل ديني ليکل شوي کتابونه ذخيره کړي او جمع کړي دي. غير مسلمو ځای پرځای دولتي چاپ خونې جوړې کړي چې د عربي فقهې نا پيدا کتابونه يې په کې چاپ کړي دي. زمونږ اسلامي حکومت ته له دې څخه درس اخستل پکار دي.[1]

**د اسلامي حکومت له دندو څخه د مساجدو ودانه‌ول دي**

د اسلامي حکومت له فرايضو څخه دي چې هغه د مسلمانانو لپاره ځای پرځای مسجدونه ودان او تعمير کړي، رسول الله ﷺ چې له هجرت کولو څخه وروسته لومړی کار ترسره کړی هغه دا و چې زمکه يې وپلورله او مسجد يې ورباندې جوړ کړ. او په هر وخت کې د اسلام پاچاهانو مسجدونه جوړ کړي دي. اوس په اسلامي حکومتونو کې د مسلمانانو پاچاهانو دا حال دی چې د مسلمان ولس لپاره مسجدونه او مدرسې جوړول ورته تر ټولو ستونزمن کار دی، خو بله

[1] . دستور الاسلام ورسره نظام الاسلام : ۱۲۰ مخ

خوا بیا د عیسایانو لپاره ګرجې او کلیساوې جوړول ورته اسانه کار دی، او ځومره اوږده، پراخه او سورروره سیمه چې د کلیسا جوړولو او یا د عیسایي ښوونځیو او لیسو جوړولو لپاره رانیول وغواړي نو د حکومت ته یې په ورکړه کې کومه ستونزه نهٔ وي. د مسلمانانو لپاره د مدرسو د جوړولو په وړاندې چې کومې ستونزې او خنډونه دي هغه د ټولو مخې ته دي. الله لك الحمد وإليك المشتكى وأنت المستعان.

## عدلیه محکمه

د شریعت په نظر کې له دیني علم، پوهنې او روزنې وروسته د عدل او انصاف درجه ده، د شریعت په اصطلاح کې د دې محکمې نوم د قضا محکمه دی. اسلامي شریعت د جنسي ، مذهبي او قومي توپیر پرته عدل او انصاف د حکومت لومړی فرض بولي، او عدل او انصاف یې په ځانګړي ډول د پاچاهۍ بنسټ او دوام پایه ګڼلې ده او له عدل سره یې د احسان حکم هم ورکړی دی.

الله تعالی فرمایي : ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُ بِٱلۡعَدۡلِ وَٱلۡإِحۡسَٰنِ﴾ النحل : ۹۰

ژباړه : یقینًا الله تعالی د عدل او ښېګڼې حکم کوي.

حضرت سلیمان علیه السلام فرمایي : عدل، انصاف او په خلکو شفقت او لورینه کول د پاچاهۍ ساتنه کوي.

عدل ولسونه د حکومت په فرمان منلو باندې سره یو کوي. ظلم او ستم د تیت او پرک کولو لامل ګرځي. عدل داسې یوه تله ده چې د دې پر مټ د بې وسه او کمزوري حق له زورو څخه اخستل کېږي، د ولسونو ژوند په عدل او انصاف ولاړ دی. ولسي وګړي به درې برخو وېشل شوي دي؛ یوه برخه هغه خلک دي چې له ولسمشر څخه لویان دي، بله برخه یې د ده له عمر سره برابر او درېیمه برخه هغه خلک دي چې د دهٔ لهٔ عمر څخه ښکته وي. نو د هیواد امیر او ولسمشر ته پکار دي چې له هغو سره چې له دهٔ څخه مشران دي؛ د پلار او اکا غوندې چلند وکړي، کوم چې ورسره په عمر کې برابر وي؛ له هغو سره د ورونو غوندې چلند وکړي او کوم خلک چې ترې کشران دي له هغو سره د خپل اولاد او ورونو په څېر چلند وکړي.

حکومتي چارې هغه مهال پرمخ ځي چې کله خلک له حکومت څخه اطاعت وکړي او اطاعت په هغه صورت کې راځي چې حکومت له خلکو سره د عدل او انصاف چلند وکړي.

**عدل دوه ډوله دی**

یو الهي عدل، او بل سیاسي او ملکي عدل دی.

الهي عدل هغه دی د کوم چې الله ﷻ حکم ورکړی او پیغمرانو ﷺ بندګانو ته رسولی دی.

سیاسي او ملکي عدل هغه دی په کوم باندې چې د پاچاهۍ ودانۍ ولاړه ده. دا دویم ډول عدل ډېر لږ او په ټیټه کچه دی، او د کوم عدل چې پیغمرانو علیهم السلام ښوونه او روزنه کړې؛ د نړۍ هېڅ یو عدل د هغه ساری نهٔ شي کېدلای، له دې امله چې د دنیاوي عدلي قانون د هوښیارانو په لاس جوړ شوی دی، او خدایي عدلي قانون د الله ﷻ له لورې د وحیې په وسلیه نازل شوی دی. نو څرګنده ده چې انساني عقل د الهي وحیې برابر نهٔ شي جوړېدلای.

الهي عدل دا دی چې امیر یا پاچا د خپل ولس نېکان، علماء، هوښیاران او خیر غوښتونکي خلک له ځان سره یو موټی کړي او د دوی په سلا مشوره د حکومت چارې سنبالې کړي، تر څو په ظاهره کې د علماو، نېکانو او صالحانو مشورې او نصیحت حکومت ته وده ورکړي او په معنوي لحاظ سره د دوی دعاوې د حکومت ملاتړ وکړي.

نړۍ د عدل بېلګه د خلفاء راشدینو په وخت کې ولیدله چې د ابوبکر صدیق، عمر فاروق، عثمان غني او د علي حیدر رضي الله عنهم په دروازه باندې کوم دروازه وان هم نهٔ و. د کسرى پاچا وزیر هرمزان چې کله مدینې منورې ته راغی نو لومړی خو یې د امیر المؤمنین عمر رضي الله عنه کومه ماڼۍ تر سترګو نه شوه، په کور باندې یې کوم ساتونکی ونه موند، پوښتنه یې وکړه چې د مسلمانانو خلیفه چېرته دی؟ خلکو ورته وویل چې هغه به په مسجد کې وي، هرمزان چې کله مسجد ته ورغی ویې لیدل چې عمر فاروق رضي الله عنه په مسجد کې د کرهېړ او وړو وړو ډبرو په یو کوټنۍ باندې سر ایښی دی او دُره یې مخ ته پرته ده، هرمزان

دا منظره ولیده او ویې ویل : **عَدَلْتَ فَأَمِنْتَ فَنُمْتَ**. په ولسونو دې عدل او انصاف پلي کړ، ته بې خوفه او بې خطره شوې او ویده شوې.[1]

امام اوزاعي رحمه الله فرمایي : پاچا له دوه لاملونو څخه هلاکیږي؛ یو خپل چاري او خود رایي، او دویم له احتجاب څخه. یعني له ولس څخه داسې په پرده کې اوسېدل چې ولس ورته لاسرسی ونه شي لرلی، ګواکې چې دی مړ وي او د دهٔ حاکمان دخلکو په ځانونو او مالونو لوبې کوي.[2]

**په عدل او انصاف باندې د عوض اخستلو حکم**

عدل او انصاف د اسلامي حکومت له فرایضو څخه دی، له دې امله شرعا یې عوض اخستل ناروا او حرام دي. کوم عوض چې د دعوې او یا دوسیې درلودونکي شخص څخه د فیصدۍ او یا فیس په نوم اخستل کیږي لکه رشوت داسې حرام دي، شرعا یې د روا والي هېڅ کومه لاره نشته. الله ﷻ فرمایي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُونُواْ قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِٱلۡقِسۡطِۖ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعۡدِلُواْۚ ٱعۡدِلُواْ هُوَ أَقۡرَبُ لِلتَّقۡوَىٰۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ﴾ المائدة : ٨

ژباړه : ای مؤمنانو ! د الله لپاره پر ربنتینولۍ ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ، د کومې ډلې دښمني دې تاسې دومره ونهٔ پاروي چې له عدل څخه واوړئ، عدالت وکړئ، دا له پرهېزګارۍ سره نږدې اړیکه لري. د الله له وېرې سره کار کوئ، هر څهٔ چې تاسې کوئ الله پرې پوره خبر دی.

مطلب دا چې له دوست او دښمن ټولو سره پهٔ پوره توګه انصاف کوئ، د عدل او انصاف تله دې داسې سره برابره وي چې د چا مینه او له چا څخه کرکه یې سرخوړه نهٔ کړای شي. نو لکه څنګه چې په شاهدۍ باندې فیس اخستل حرام او ناروا دي دې ته ورته په عدل او انصاف کولو باندې کوم فیس یا فیصدي اخستل هم حرام دي، دا په حقیقت کې له عدل او انصاف څخه د تجارت او سوداګرۍ په توګه ګټه اخستل دي. له همدې امله فقهاء کرامو دا مسئله لیکلې ده چې څوک عدل د سوداګرۍ په توګه وکاروي او دا ډول عدل ربنتونی عدل وبولي کافر کیږي، ځکه چې دا ظلم دی او ظلم عدل بلل کفر

[1]. سراج الملوک : ۴۶ مخ
[2]. سراج الملوک : ۵۰ مخ

دی. د شریعت یوه مسئله دا هم ده چې د رشوت په مال باندې زکوة نشته لکه څرنګه چې د غلا او لارې وهلو په مال باندې زکوة نشته، زکوة په حلال مال باندې واجب کېږي، په حرام مال باندې زکوة نشته او لهٔ حرام مال څخه خیرات او صدقه ورکول هم حرام دي، او چې حرام مال خیرات او پرې د ثواب هیله لري په دې کې د کفر اندېښنه ده. په دې چې حرام ناولی دی او په ناولي او ناپاک مال باندې د ثواب هیله کول له الله تعالی سره ټوکې کول دي.

**د عدلیې آزادي**

په اسلام کې چې څومره عدلیې ته آزادي ورکړل شوې ده، د نړۍ په هېڅ کوم دستور او قانون کې دومره آزادي نشته.

د قرآن کریم او حدیثو له مخې د عدل او انصاف له قانون څخه هېڅ یو فرد هم مستثنی نهٔ دی، امیر او فقیر خپل او پردی ټول سره برابر دي، د عدل او انصاف په لحاظ سره که چېرې په امیر د مملکت یا په کوم بل وزیر باندې څوک دعوه وکړي نو د شریعت له نظره د قاضي په وړاندې دواړه څنګ په څنګه باندې سره درول پکار دي. په اسلامي محکمه کې څرنګه چې په یو عام سړي باندې دوسیه او دعوه چلول کېږي همدغه ډول پرته له کوم توپیر څخه د مملکت په امیر باندې هم چلېدلای شي، او هر یوهٔ ته په ازادۍ سره د پوښتنې او ځواب وخت ورکول کېږي، هر لورې پرته له کوم دلیل او وکیل څخه خپله د حاکم په وړاندې مدعی ښکاره کولای شي، او تر څو چې شونې وي په پرېکړه کې تاخیر او ځنډ نهٔ کېږي. ځکه چې پرته له کوم لامل څخه په پرېکړه کې ځنډ کول ظلم او تېری دی، او له لامل ښودلو د یو چا بند او د نظارت په پلمه څوک پرته لهٔ کوم دلیل څخه نیول د شریعت له نظره سراسر ظلم دی او د عدل او انصاف له اصولو څخه مخالف کار دی، قرآن کریم او نبوي حدیثونه د عدل او انصاف له حکم، او د ظلم او تېري له منعې څخه ډک پراتهٔ دي. الله تعالی فرمايي : ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُ بِٱلۡعَدۡلِ وَٱلۡإِحۡسَٰنِ﴾ النحل : ۹۰

ژباړه : یقینًا الله تعالی د عدل او ښېګڼې حکم کوي.

او په بل آیت کې فرمایي: ﴿وَلَا تَحۡسَبَنَّ ٱللَّهَ غَٰفِلًا عَمَّا يَعۡمَلُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ إبراهيم : ۴۲

ژباړه : اوس چې دوی څهٔ کوي ، تهٔ الله تعالی لهٔ دوی غافل مهٔ ګڼه.

**د حکومت چارې له عدل او انصاف پرته نهٔ شي چلېدلای**
لکه چې ويل شوي دي چې پاچا که کافر وي خو عادل وي له مسلمان ظالم ښخه ښه دی، ځکه چې دا ظالم د خپل ظلم له امله خلک هلاکوي او خلک د مجبورۍ له مخې د کافرانو هیوادونو ته ځي، له دې امله د امیر عادل‌والی عقلًا ا ونقلًا د اسلام له مخې شرط شو.

په پاچا باندې دا فرض دي چې هغه په خپل د ولسونو د حلاتو څېړنه وکړي او د بې وزلو او مظلومانو سره مرسته وکړل شي.

د هیواد د پاچا په خپل په بازارونو، کوڅو او مسجدونو کې په تللو او په خپله ژبه د خلکو حال معلومولو کې دا حکمت دی چې مظلوم سړی د پاچا په دربار کې د حاضرېدلو او د خپل حال بیانولو وس نه لري او په تېره بیا هغه حاکمان چې ظالمان دي د دې خبرې پوره چمتووالی لري چې کوم فقیر او بې وزله سړی د دهٔ دربار ته ونهٔ رسېږي، او فرضا په کوم یو صورت کې ورسېدهٔ نو دا ظالم حاکم په یوه ترتیب سره دهٔ ته له دربار څخه د ابستلو یوه لاره برابروي، له دې امله عقلًا او شرعًا دا اړینه ده چې پاچا دې په خپله لاړ شي او د خلکو حالت دې له نږدې څخه وګوري.

د یو هیواد پاچا که په هره اونۍ کې دا کار ونهٔ کړي نو په هره میاشت کې خو اړینه ده چې دا عامه شکایتونه واوري او د خلکو ستونزې حل کړي، او کوم ورځ چې پاچا د دې کار لپاره راوځي هغه ورځ باید ټاکل شوې وي چې خلک خبر وي چې نن ورځ زمونږ د ژړا اورېدو لپاره پاچا دباندې تشریف راوړی دی. د خلفاء راشدینو دروازې هر ورځ د خلکو پر مخ پرانستې وې.

**د سلطان نور الدين يوه په زړهٔ پورې کيسه**

سلطان نور الدين امر صادر کړ چې ترڅو په يوه سړي باندې له شرعي قاعدو سره سم جرم ثابت شوې نه وي ده ته دې سزا نه ورکول کېږي، د موصل د والي په خپله دا قدرت نه وو چې د پاچا په خدمت کې څه عرض وکړي خو په يوه لاره يې پاچا ته دا وليکل چې په ځنګلونو کې لوټ مار روان دی، خو هلته کوم شاهد نه و، که د شريعت له قاعدو سره سم سزا په شهادت باندې موقوفه شي نو دمفسدينو انتظام ډېره ګرانه خبره ده له دې امله اړتيا ده چې له سياست څخه کار واخستل شي او د امن راوستولو لپاره خلکو ته سزا ګانې ورکړل شي.

پاچا په ځواب کې وويل چې الله ﷻ د خپلو بندګانو له مصلحتونو څخه ښهٔ خبر دی، که د الله ﷻ په وړاندې په دې کې مصلحت وای نو په شريعت کې به خامخا د دې اجازه وای، مګر دهٔ ﷻ په خپل حکمت او رحمت سره په شريعت کې د سزا قاعدې ټاکلې دي، له دې څخه د تېري کولو هېڅ لامل نشته. پاچا د شريعت خلاف هېڅ کوم سياست ته اجازه ورنهٔ کړه، چې د دې برکت دا شو چې د ده د حکومت په دوره کې په کومه کچه چې په هيواد کې امن او امان و د کوم بل پاچا د حکومت په دوره کې نهٔ و.

ابن اثير جزری رحمه الله په خپل تاريخ کې ليکلي دي چې سلطان نور الدين رحمه الله په وخت کې د عدل او انصاف دا لاره وه چې هغه د نورو پاچاهانو په ډول يوازې د بد ګمانۍ او تهمت پر بنسټ او بنا باندې چاته سزا نه ورکوله بلکې شاهد يې راغوښت، که به يې له شرعي قاعدې سره سم د هغه اثبات کېدلای شو نو سزا به يې باندې جاري کوله، نو د دې عدل او انصاف دا برکت شو چې په ملک کې په بشپړه توګه امن او امان پلي شو او د مفسدينو شتون پاتې نه شو.

**د واسطې او رشوت اخستلو بندول**

شريعت د رشوت (بډې) اخستلو ټولې دروازې بندې کړي دي، ترڅو په عدل او انصاف کې د يوې خاشې برابر ځنډ والی او لږ والی رانهٔ شي، په قرآن کريم او احاديثو کې د بډې اخستلو د حرام والي او منع والي په اړه بې شمېره اياتونه او حديثونه شتون لري.

**د عام شکایت اجازه**
په اسلام کې هر کس ته دا حق شته چې د کوم حاکم چې وغواړي پاچا ته شکایت وکړي، او که په خپله د پاچا په اړوند شکایت وي نو په مسجد کې دې د عامو مسلمانانو په وړاندې وکړي. پاچا هم تر پوښتنې لاندې نیول کېدلی شي، د سیدنا حضرت عمر فاروق ﷺ ټول ژوند ددې شاهد دی چې په دې برخه کې ترې تاریخونه ډک دي.

**د پوځ جوړه‌ول**
دا نړۍ لهٔ یو بل سره د ضدیت او اختلاف نړۍ ده ، لهٔ خیر او شر، حق او باطل او لهٔ پاک او ناپاک څخه جوړه ده، د تضاد او اختلاف لازمه پایله جنګ جګړه ده، نو که حق لهٔ باطل سره جګړه وکړي نو دا جهاد دی ، او که باطل د حق په مقابل کې ور ودانګي نو دا فتنه او فساد دی، له دې امله اړینه وګڼل شوه چې له حق سره یو پوځ شتون ولري چې هغه د باطل سر ور وځپي. نو که په پیل کې باطل د حق مقابلې ته راودانګي او حق یې مقابله وکړي نو دا جهاد دفاعي دی، او که حق دا سوچ وکړ چې باطل د مقابلې او جګړې کولو چمتووالی نیسي، نو څو چې باطل راځي او راباندې برید کوي زه به په مخکې نه مخکې ورشم او داسې کاري وار به پرې وکړم چې په راتلونکي کې بیا د حق په واندي سر راپورته نه کړای شي، دا جهاد اقدامي دی په شریعت کې دا دواړه جهادونه شتون لري، په څهٔ کې چې د هیواد والو مصلحت وي د هغه سره سم صورت دي غوره کړای شي.

مرعوب ذهنونه او ذهنیتونه له اقدامي جهاد څخه منکر دي، دا ډول خلک د قرآن او حدیثو له احکامو څخه لرې پاتې شوي له دې امله د داسې خلکو له اقدامي جهاد څخه انکار د اعتبار وړ نهٔ دی.

**د جهاد موخه او مقصد**
د جهاد موخه دا ده چې د اسلام د دین حکومت ولاړ ووسي او کفر د دې تابع ووسي او پرته له کوم خنډ او ځنډ څخه د دین احکام جاري او پلي شي، او هېڅ یو زور او ځواک د دوی په اجراء او تنفیذ کې مزاحم جوړ نهٔ شي، او خلکو ته د الهي احکامو اطاعت اسانه وي لکه چې الله ﷻ فرمایي: ﴿هُوَ الَّذِيٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ﴾ التوبة : ٣٣

ژباړه : الله تعالی هغه ذات دی چې خپل پیغمبر یې له هدایت او حق دین سره رالیږلی دی ، ترڅو چې هغه پر ټولو دینونو باندې برلاسی کړي. که مشرکانو ته دا څومره ناکاره برېښي هم.

او دا حق یوازې داسلام دین ته ورکړل شوی دی چې هغه له ټولو نه پورته او هسک ووسي، ځکه چې د اسلام دین حق او نور دینونه باطل دي، او د حق دین دا حق دی چې په باطل باندې حکمران، او باطل د حق په وړاندې نسکور وي، ناپاکي ته دا حق نشته چې په طهارت او پاکوالي باندې حکومت وکړي، او هر کله چې مرداري په پاکوالي باندې حاکمه شوه نو پوه شه چې قیامت رانیږدې شوی دی.

**د پوځ چونۍ ګاني او پوځي چمتووالی**

د رسول اکرم ﷺ په مبارکه زمانه کې نه کومه چونۍ وه او نه د ځواکونو تنظیم او ترتیب و، د هر مسلمان کور او شاوخوا د اسلام چونۍ وه ، کله به چې د نبي کریم ﷺ امر کېدهٔ چې فلانۍ سیمې او فلاني ښار ته د جهاد لپاره لاړ شئ، هغه وخت به غشي او توره په لاس عاشقان او سر ښندونکي به راوتل او په ډګر کې به درېدل او د قُوت لایموت لپاره به یې یو څه اندازه خرماګانې په خپلو ځولیو کې اچولې. له رسول الله ﷺ څخه وروسته صدیق اکبر رضي الله عنه د خلافت په وخت کې همدا حال وهٔ، بیا کله چې د فاروق اعظم رضي الله عنه د خلافت دوره شوه نو دوی په منظمه توګه پوځي چونۍ جوړې کړې، او شام، عراق او مصر فتح شول ، د پوځ معاشونه یې وټاکل، به بصره، فلسطین، موصل، حمص، اردن او اسکندریه او په دا ډول لویو لویو ښارونو کې یې چونۍ او یو لوی پوځي کمپ یې په مدینه منوره کې جوړ کړ.

لهٔ فاروق اعظم رضي الله عنه څخه وروسته ولید بن عبد الملک پوځي تشکیلاتو ته لا زیات پراخوالی ورکړ.

د رسول الله ﷺ په وخت کې پوځي بیرغ هم و چې د **لا إله إلا الله** کلمه پرې لیکل شوې وه.

**د مرتد وژل**

د مشرکینو او کافرانو له جهاد څخه پرته د مرتدانو ، ملحدانو او زندیقانو وژل او لهٔ دوی سره جګړه، دا هم د جهاد یو ډول دی لکه څنګه چې له کفارو او مشرکانو سره جهاد او جګړه د اسلامي حکومت دنده ده همدا راز د مرتدانو او ملحدانو جرړې او بېخ اېستل هم د اسلامي حکومت دنده او له فرایضو څخه ده. مرتد په لغت کې ګرځېدونکي ته ویل کېږي، د اسلام او شریعت په اصطلاح کې له اسلامي دین څخه اوړېدونکي ته مرتد ویل کېږي.

د مرتد حکم دا دی چې د اسلامي حکومت په ذمه د دهٔ وژل واجب دي لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې الله ﷻ فرمایي: ﴿يَآأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَأْتِي اللهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ۚ ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾ المائدة : ٥٤

ژباړه : ای مؤمنانو ! که له تاسي څخه څوک له خپل دین څخه واوړي ، (اسلام ته پرې کوم زیان نهٔ رسېږي ځکه چې) الله تعالی به نور ډېر داسې خلک پیدا کړي چې الله تعالی ته ګران وي، او الله هغوی ته ګران وي، چې لهٔ مؤمنانو سره به په نرمۍ چلند کوي او پر کافرانو به سختي کوي، چې د الله په لار کې به وجنګېږي او له هېڅ ملامتوونکي او لهٔ پېغور اچولو څخه به ونهٔ وېرېږي. دا د الله فضل دی، چاته چې یې خوښه شي ورپه برخه کوي یې. الله د پراخه وسایلو څښتن او پهٔ هر څهٔ پوهېږي.

او په حدیث شریف کې راغلي دي ( **من بدّل دینه فاقتلوه** ) یعنې چا چې خپل دین بدل کړ ویې وژنئ. د تفسیر او حدیثونو په کتابونو کې د دې بشپړ تفصیل ذکر شوی دی. د ارتداد له ټولو څخه لویه فتنه د نبي کریم ﷺ له وفات څخه وروسته د صدیق اکبر رضي الله عنه د خلافت په دوره کې خپره شوه، څو کرته د اسلام په مقابل کې مرتدین ودرېدل. دا مرتدین درې ډوله وو؛ څوک د خپل پخواني کفري مذهب لورې ته لاړل او څوک د نبوت دعوه کوونکي جوړ شول او څوک په دې دوه ډوله خلکو پسې لاړل، لکه اسود عنسي، مسیلمه کذاب او

طليحه اسدي. دغو کفارو د غلام احمد قاديانو په څېر د نبوت دعوه وکړه ، صديق اکبر ﷺ له دغو ټولو مرتدينو سره د جهاد او جګړې لپاره د صحابه کرامو لښکر او نبوي پوځ روان کړ و دا ټول مرتدين يې د مرګ ګودر ته ښکته کړل. په خاصه توګه کومو خلکو چې د نوبت دعوه کړې وه هغوی او د هغوی تابع خلک يې په ځانګړي ځانګړي ډول چڼ کړل او ويې وژل. او د يمامه د نبوت مدعي مسيلمه کذاب د پيروانو يوه لويه ډله يې ونيوله او مدينې منورې ته يې راوستله، صديق اکبر ﷺ دغه ټول بنديان مريان او منيزې کړل او په مسلمانانو کې يې ووېشل چې له هغوی څخه يې يوه مينزه سيدنا علي ﷺ ته ورکړه.

**د ارتداد حکم**

ارتدار سره العياذ بالله د سړي نکاح هم باطلېږي، د دهٔ خپله ښځه که مسلمانه وي او که کتابيه وي او د مرتد سړي ذبح يعني حلاله هم حرامه ده، او که يې ښکار وکړ هغه هم حرام دی هېچاته يې خوراک نهٔ دی روا، او که مرتد مړ شو د جنازې لمونځ يې هم نشته او نه دی د مسلمانانو په هديره کې خښېدلای شي.

**د مرتد د مال حکم**

د مرتد د مال حکم دا دی چې د دهٔ ټول مال دې په بيت المال کې واچول شي او د غنيمت د مال په ډول دی ولګول شي.

د سيدنا حضرت ابوبکر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما دا تګلاره وه چې مرتد خلک او د نبوت مدعيان او د دوی پيروان يې وژل، او د سيدنا علي ﷺ دا تګلاره وه چې د مرتدو خلکو او زنديقانو د سوځولو حکم يې ورکاوهٔ، چې ژوندي دې په اور کې واچول شي ترڅو خلک ورڅخه عبرت او پند واخلي.

علامه انور شاه کشيري رحمه الله به فرمايل چې مړهٔ دې کړای شي او په اور کې دې واچول شي، نو په ټولو حديثونو باندې عمل کېږي.[1]

[1] . د مولانا محمد ادريس کاندهلوي له افاداتو څخه

**لهٔ حکومت څخه مرتد کېدل**

د شریعت په اصطلاح کې مرتد هغه دی چې د اسلام له دین څخه واوړي، او د حکومت په وړاندې مرتد هغه دی چې د یو حکومت له رعیت جوړېدلو څخه وروسته له هغه حکومت څخه واوړي، او د هغه له دستور او قانون څخه انکار وکړي او دا ووایي چې زه دا حکومت نه منم، نو دا ډول سړی له حکومت څخه مرتد دی، دا ډول خلکو چې ځان ته یو پاچا جوړ کړی او د حکومت مقابله کوي، نو حکومت د دې خلکو لپاره داسې یو قانون جوړ کړی دی چې چېرته وموندل شي باید په مرمۍ وویشتل شي او له منځه یوړل شي.

دا خلک د داسې یو فاني او مجازي حکومت مرتد دي چې په رایو سره منځ ته راغلی او په کې د هغو خلکو رایه هم ګډه ده چې د حکومت په مقابل کې ولاړ دي، او دا خلک د حکومت مخلوق نه دی یوازې ولس یې دی، دوی ته وجود عقل او فهیم الله تعالی ورکړي دي، دغو حکومتونو نهٔ دي ورکړي. نو څرنګه چې د یوې محدودې سیمې د فاني او مجازي حکومت مرتد واجب القتل دی، نو د احکم الحاکمین څښتن لهٔ دي څخه مرتد ولې واجب القتل نهٔ دی؟ چې ورته یې عقل ، فهم او فراست ورکړی دی، او حکومت یې ازلي او تل ترتله دی چې په کې د زوال او اختلال احتمال هم نشته.

د سلطنت په قوانینو کې هم د باغي سزا تر هغو خلکو زیاته ده کوم چې له پیل څخه د حکومت رعیت او ولس نهٔ وي، له دې امله چې په شریعت کې د مرتد سزا د اصلي کافر په پرتله سخته ده.[1]

**ملحد او زندیق**

کوم څوک چې په رډه توګه اسلام نهٔ مني هغه رډ بډ کافر دی، او کوم کس چې په ښکاره د اسلام اقرار کوي خو په شرعي نصوصو او شرعیه احکامو کې داسې تاویلونه کوي چې له هغه تاویل څخه د شرعي حکم یا نص حقیقت بدل شي، دا سړی د شریعت په نظر کې د منافق په حکم کې دی، د دهٔ حکم هم هغه دی کوم چې د مرتد، زندیق او کافر دی، یعنې واجب القتل دی. (پورتنۍ حواله)

---

[1] . دستور الاسلام : ۱۳۰ مخ - مولانا محمد ادریس کاندهلوي

**د حکومت ملحد**

کوم څوک چې د حکومت قانون په ښکاره مني خو ورکې تاویلونه کوي او داسې نادرې ناشلوتې معناګانې یې بیانوي چې تر ننه پورې کوم عالم قاضي او یا کوم پروفیسور نه وي کړې او په لوړ غږ وایي چې (دا سل کاله چې په دې قانون سره قاضیانو او قانون پوهانو پرېکړې کړي دي او یا یې معناګانې فهمولې دي دا ټولې غلطې دي، او کوم قانون پوهانو چې د ده په هر اړخ باندې خبرې کړې هغه ټولې بې ځایه دي او قانو د چا په اجاره نه دی هر چاته حق شته چې په قانون کې اجتهاد وکړي). نو داسې سړی د قاضیانو په نظر کې د حکومت ملحد او زندیق بلل کیږي.

همدا ډول د شریعت ملحد او زندیق هغه کس دی چې په ښکاره توګه د توحید او رسالت، د قرآن او سنت اقرار کوي او په ژبه باندې خپل ځان ته مسلمان هم وایي، خو د قرآني آیاتونو او نبوي احادیثو دا ډول ناشنا او عجیبې معنا ګانې بیانوي چې د صحابه کرامو او تابعینو له وخت څخه تر اوسه د کوم عالم او فاضل په وهم او ګمان کې هم نه وي تېرې شوې.

په خپل کور یا دفتر کې ناست او دا ویل چې ؛ د شریعت په قانون باندې د کوم مولوي او عالم اجاره داري خو نشته، او نورې داسې خبرې وکړي؛ نو دا ډول سړی د شریعت ملحد او زندیق دی.

سمه ده چې د شریعت په قانون باندې د کوم ملاء او عالم اجاره داري نشته، خو دا یاد لرئ چې عالم او ملاء د کومې کورنۍ او قبیلې نوم نهٔ دی. چا چې په منظمه توګه د حکومت قانون ولوست هغه وکیل، څارنوال او قاضی دی، او چا چې په سمه توګه د شریعت قانون ولوست هغه عالم، ملاء او مولوي دی.

نو لکه څنګه چې نالوستي سړي ته د حکومت د قانون د تفسیر او تعبیر حق نشته ، همدا ډول نالوستي ته د شریعت د قانون د تفسیر او تعبیر حق نشته. د علم او پوهې پر مټ هر سړی د شرعي قانون د تفسیر او تعبیر حق لري، او له علم پرته هېچا ته هېڅ حق نشته.

## د اسلامي حکومت دنده

د اسلامي حکومت دنده ده چې د اسلام دين په هغه حال باندې وساتي په کوم حالت ، صورت او هيئت چې مونږ ته له صحابه کرامو او تابعينو څخه رارسېدلی دی، له هغه صورت او هيئت څخه تغير او تبديل ورکول کفر دی. د انسان د شتون لپاره روح او تن دواړه پکار دي، له پوستکي اېستلو وروسته روح هم په تن کې نشي اوسېدلای، له دې امله کوم خلک چې د اسلام پوستکي وباسي او وايي چې علماو ته ښايي چې د اسلام روح پاتې وساتي او د پوستکي پروا دې نهٔ کوي. دا د ملحدينو خبرې دي چې د هغو منشا دا ده چې د اسلام پوستکي ورڅخه وباسي او د نصرانيت پوستکي ورواغوندي. ښهٔ وپوهېږئ چې دا کار ناممکن دی، کله چې د اسلام پوستکي اېستل کېږي نو د اسلام روح هم وځي.[1]

## د وسلو کارخانه

د هر حکومت لپاره دا اړينه ده چې د وسلو کارخانه جوړه کړي، ځکه چې له دښمن څخه د ځان ساتلو ذريعه يوځي وسله ده، ترڅو چې له پوځ سره وسله نه وي هغه جګړه نهٔ شي کولای. په قرآن کريم کې الله تعالی د سيدنا داود عليه السلام په اړه فرمايي : ﴿وَعَلَّمْنَٰهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّنۢ بَأْسِكُمْ ۖ فَهَلْ أَنتُمْ شَٰكِرُونَ﴾ الأنبياء : ۸۰

ژباړه : او مونږ هغهٔ ته ستاسې د ګټې لپاره د زغرې جوړولو هنر ښودلی ؤ، ترڅو چې تاسې يو د بل لهٔ ګوزار څخه وژغوري، نو آيا تاسې شکر اېستونکي ياست؟

الله تعالی د داود عليه السلام لپاره اوسپنه ويلې کړه چې په اسانی سره به يې ترې زغرې جوړولې او په جګړه کې به يې ترې ګټه اخستله، ځکه چې په هغه وخت کې فولادي زغرو زيات اهيمت درلود. د دې هنر او صنعت زده کړه د الله سبحانه وتعالی له لورې داود عليه السلام ته ورکړل شوې وه، لکه څرنګه چې په

---

[1] . د محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله له وينا څخه

بل ځای کې الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ مِنَّا فَضْلًا ... وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ﴿١٠﴾ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١﴾﴾ سبأ: ١٠-١١

ژباړه : او مونږ اوسپنه د هغهٔ (داود ﷺ) لپاره نرمه کړه؛ لهٔ دې لارښوونې سره سم چې زغرې جوړې کړه او د هغو کړی په سمه اندازه ورکړه. (ای د داود ﷺ کورنی !) نېک عمل وکړئ، تاسې چې څهٔ کوئ زهٔ هغه وینم.

الله ﷻ داود ﷺ ته له نبوت سره سم پاچاهي هم ورکړې وه، له همدې امله يې هغهٔ ته داسې یوه معجزه ورکړه چې د نبوت او پاچاهی دواړو له شان سره مناسبه وي، هغه دا چې کله به اوسپنه د دهٔ مبارک لاس ته ورسېدله د مومو په ډول ویلې کېدله، او څهٔ به یې چې غوښتل هغه به یې ترې جوړول او پلورل یې او د ژوند گزاره به یې پرې کوله، ترڅو په بیت المال باندې د دهٔ د کور د خرڅې بار ونه لوېږي. له داود ﷺ څخه وړاندې هم په نړی کې د اوسپنې صنعت شتون درلود، چې پښانو (آهنگرانو) به پهٔ اور ويلې کولې او بیا به یې ترې زغرې جوړولې، چې هغه به ډېرې درنې وې او خلکو ته به يې اغوستل گران وو. داود ﷺ ته الله تعالی دا اعجازي ښه والی ورپه برخه کړ چې اوسپنه د دوی لاس ته په رسېدو سره ویلې کېدله. د يو ايات په پای کې ویل شوي؛ ﴿فَهَلْ أَنتُمْ شَاكِرُونَ﴾ يعنې داسې نعمت چې درپه برخه شو نو تاسې ته هم شکر ايستل پکار دي، نه کفران د نعمت. او د بل آیت شریف په پای کې فرمايي: ﴿وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ يعنې نېک عمل وکړئ، تاسې چې څهٔ کوئ زهٔ هغه وینم. اشاره دې ته ده چې په کار او صنعت بوخت او د الله ﷻ له بندگی او عبادت څخه مهٔ گوښه کيږئ. دا نعمت الله تعالی درکړی دی او هغه مو ويني، نو هغه په ياد ولرئ.

په اسلام کې له دغه وخت څخه دغه ډول د فولادو صنعت پیل شوی دی، نو چې هر حکومت له اسلام څخه د دا ډول توکو د جوړولو اخذ کوي، ځکه د اسلام تقليد منل او قدر کول د هر حکومت فریضه ده.

**بحري بېړۍ**
په نړۍ کې تر ټولو وړاندې سیدنا حضرت نوح علیه السلام د الله جل جلاله په حکم سره یوه لویه بېړۍ جوړه کړه، د غرونو غوندې له لویو څپو څخه به یې دوی تېرول، الله جل جلاله فرمایي : ﴿فَأَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡهِ أَنِ ٱصۡنَعِ ٱلۡفُلۡكَ بِأَعۡيُنِنَا وَوَحۡيِنَا﴾ المؤمنون : ٢٧

ژباړه : (مونږ هغهٔ ته وحیې وکړه چې زمونږ تر څارنې لاندې او زمونږ له وحیې سره سم بېړۍ جوړه کړه)

﴿وَهِيَ تَجۡرِي بِهِمۡ فِي مَوۡجٖ كَٱلۡجِبَالِ﴾ هود : ٤٢

ژباړه : بېړۍ هغه خلک راخېستي روانه وه او هر څپه لکه د غرهٔ په څېر راپورته کېدله.

په وروستیو کې به هرو مرو په دې لړ کې پرمختګ شوی وي خو په نړۍ کې د بېړۍ جوړولو پیل د الله ﷻ په حکم سره د یو ستر پیغمبر نوح علیه السلام په لاسونو شوی دی.

**خدایي هوایي الوتکه**
له حضرت داؤد عليه السلام څخه وروسته الله ﷻ د دهٔ محترم زوی حضرت سلیمان علیه السلام هم د نبوت او پاچاهۍ په دواړو نعمتونو سر لوړی کړ، او له دې سره سره یې څهٔ ځانګړي او امتیازي معجزې هم ورکړې چې له هغو څخه یې دوه دلته د یادوٗنې وړ دي؛ چې یوه معجزه د باد د تسخیر وه چې الله جل جلاله هوا ورته مسخره کړې وه او هوا د دهٔ تر امر لاندې وه.

سلیمان عليه السلام به د خپل دولت له غړیو سره په یو تخت کېناست او هوا ته به یې امر وکړ چې تخت والوزوي، نو هوا به د دوی له امر سره سم تخت پورته کړ، له یمن څخه تر شامه او له شام څخه تر یمنه به یې د یوې میاشتې واټن تر غرمې پورې وواهه، ګواکې د سلیمان عليه السلام تخت له ماشین، انجن او د ظاهري اسبابو پرته یوه هوایي تېز رفتاره الوتکه وه بلکې له الوتکې به یې هم له ښې الوتنې سره سلیمان عليه السلام وړهٔ، د هغه د چلولو او درولو لپاره کوم

ماشين ته اړتيا نهٔ وه. کله چې بشري ځواک له کمزورۍ او ناتوانۍ سره سره هم د هوايي الوتکو ايجاد کولای شي او د خپلې منشأ سره سم يې چلولای شي، نو آيا د نړۍ د پيدا کوونکي خالق ﷻ دا قدرت نشته چې د خپل کوم غوره کړل شوي بنده لپاره هوا مسخره او تابع وګرځوي او د هغه تخت داسې هوايي الوتکه جوړه کړي چې له ماشين او انجن پرته، او د هغه لهٔ منشأ سره سم وچلېږي؟ الله ﷻ چې څهٔ وغواړي په هغې قادر دی.

الله ﷻ دا معجزه په قرآن کې دا ډول ياده کړې ده: ﴿وَلِسُلَيْمَٰنَ ٱلرِّيحَ عَاصِفَةً تَجْرِى بِأَمْرِهِۦٓ إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا ۚ وَكُنَّا بِكُلِّ شَىْءٍ عَٰلِمِينَ﴾ الأنبياء : ٨١

ژباړه : او سليمان عليه السلام ته مونږه تند باد تابع کړی ؤ، چې د هغهٔ په حکم سره د هغه هيواد لورې ته الوتهٔ چې مونږ په کې برکتونه ايښي دي، او مونږ پهٔ هر څهٔ علم لرونکي يوو.

يعنې په کوم رفتار سره چې سليمان عليه السلام غوښتلای، که تېز ؤ او که ورو ورو ، په همغه اندازه رفتار چلېدهٔ. الله تعالی فرمايي: ﴿وَلِسُلَيْمَٰنَ ٱلرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ سبأ : ١٢

او د سليمان عليه السلام لپاره مونږ باد مسخر او تابع کړی ؤ، د سهار به مهال کې د هغهٔ چلېدل د يوې مياشتې تر واټن پورې او د شپې له مخې د يوې مياشتې تر واټن پورې وهٔ.

او دويمه معجزه چې الله ﷻ سليمان عليه السلام ته ورکړې وه هغه دا وه چې الله ﷻ د دهٔ لپاره د مسو يوه چينه وبهوله چې پېرپانو به هغه په سانچو کې اچوله او لوی لوی لوښي او ديګونه به يې ترې جوړول، لکه چې په همدې آيت شريف کې ذکر دی، الله تعالی فرمايي: ﴿وَأَسَلْنَا لَهُۥ عَيْنَ ٱلْقِطْرِ﴾ سبأ : ١٢

ژباړه : مونږ د هغهٔ لپاره د ويلې شويو مېسو چينه وبهوله.

مطلب دا چې په قدرتي توګه ورته د مسو کارخانه ورکړله شوه او له دې څخه پرته پېريان او نور کاينات هم الله تعالی سليمان عليه السلام ته تابع او پيروان ګرځولي

وو، چې تفصلي ذکر يې په قرآن کريم کې شته. د پېريانو د تسخير معجزه څکه سليمان ﷺ ته ورکړل شوې وه چې لويې لويې کلاګانې او لوی لوی سامانونه په اسانۍ سره چمتو کړای شي، څکه چې داسې درانه کارونه انسانانو مزدورانو ته ګران پرېوځي. او همدا ډول په قرآن کريم کې دا هم ذکر دی چې د سليمان ﷺ په وړاندې د جهاد اسونه وړاندې کړل شول او هغهٔ مبارک ورته کتل، او د سليمان ﷺ اسونه ډېر خوښ وو ځکه چې هغه د جهاد ذريعه ده او د الله ﷻ له دښمنانو سره جهاد کول لوی عبادت دی. له دې امله په قرآن کريم کې د مسلمانانو لپاره د جهاد سامان د چمتو والي حکم نازل شو، الله تعالی فرمايي: ﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾ الأنفال : ٦٠

ژباړه : او تاسې تر خپلې وسې پورې ډېر زيات طاقت او تيار زين کړي اسونه د هغوی د مقابلې لپاره چمتو کړئ. تر څو چې په دې وسيله د الله ﷻ پر دښمنانو، پر خپلو دښمنانو او پر هغو نورو دښمنانو هيبت راولئ چې تاسې يې نهٔ پېژنئ، خو الله ﷻ يې پېژني. د الله په لار کې چې تاسې هر څهٔ لګوئ، د هغو پوره بشپړ مکافات او بدله به ستاسې لورې ته راوګرځول شي. او تاسې سره به هيڅ کله ظلم ونهٔ شي.

څرګنده شوه چې د خپل وس په اندازه د کفارو د مقابلې لپاره د جهادي توکو چمتو کول اړين دي، لکه؛ آس ، توره ، غشی ، نېزه ، هوايي الوتکه، سمندري جنګي بېړۍ او داسې نور. پرته له شکه چې دا ټول توکي په دې آيت کريمه کې داخل دي: ﴿وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ﴾ الحديد : ٢٥

ژباړه : او اوسپنه مو نازله کړه چې په هغې کې ډېر زور دی او د خلکو لپاره په هغې کې ډول ډول ګټې دي.

مطلب دا چې فولادي صنعت په ديني او دنياوي ګټو باندې مشتمل دی، له همدې امله الله ﷻ په قرآن عظيم الشان کې د يوه سورت نوم هم الحديد اېښی دی، څو چې دا څرګنده شي چې الله ﷻ لکه څنګه چې اسماني کتابونه د خلکو

د هدایت او لارښوونې لپاره نازل کړي دي همدا ډول یې خلکو لپاره د جنګي ساتنې په خاطر هم اوسپنه رالیږلې ده څو خلک ورڅخه جنګي وسلې او ډول ډول توکي جوړ کړي.

له هجرت څخه وروسته چې کله د جهاد حکم نازل شو نو رسول الله ﷺ په جهاد کې د غشي او تورې د کارولو وفرمایل، کوم چې په هغه وخت کې رواج ؤ، او په جهاد کې یې سمه دمه هغه ډول د جګړې لاره جاري وساتله کومه چې د عربو په پرګنو کې جاري وه.

په پنځمه هجري سنه کې چې کله د عربو ټولې قبیلې یو موټی شوې او په مدینه منوره باندې د برید کولو لپاره سره راټول شول ، له کومې څخه چې د الاحزاب په غزا باندې تعبیر کیږي، په هماغه وخت کې رسول الله ﷺ د سلمان فارسي رضي الله عنه په سلا مشوره د جنګ یوه نوې لاره غوره کړه کومه چې د عربو په رواج کې نهٔ وه، هغه دا چې د مدینې منورې په چارچاپیر کې کندې او خندقان وکیندل شي او په هغو کې په کېناستلو سره د عربو مشرکانو مقابله وکړای شي، له دې امله هغې غزا ته د خندق غرا هم ویل کیږي، لکه څرنګه چې د قریشو د قوم سالار ابو سفیان د خندقانو دا حال ولید نو حیران پاتې شو او داسې وویل : (والله هذه مكيدة ماكانت العرب تكيدها). په خدای قسم دا د جګړې یوه نادره لاره ده چې د عربو خلک له دې تدبیر څخه نهٔ وو خبر.

دا طریقه او لاره چې رسول الله ﷺ غوره کړې وه د مجوسیانو او کسرى وه، او ټولو صحابه کرامو په دې کې ونډه او برخه واخسته او په یوه غږ یې خندقونه وکیندل او له ټولو سره یوځای رسول الله ﷺ مل او ملګرى وهٔ، لکه څرنګه چې د صحیح البخاري په روایتونو کې په واضحه توګه راغلي دي. نو څرګنده شوه چې د اسلام له دښمنانو سره په جګړه او دفاع کې د عجمیانو تګلاره غوره کول کومه ګناه نهٔ ده.

بیا د خیبر غزا مخته راغله چې د یهودیانو مرکز وهٔ، او په دې کې یهودیانو ډېرې کلاګانې درلودلې چې ډېرې ټینګې او کلکې وې چې په فتح کولو کې یې تقریبا یوه میاشت ولګېده. د خیبر له کلاګانو یوه د مصعب په نوم کلا وه چې کله هغه د مسلمانانو لاس ته ورغله او د هغې د نغمونو (تونلونو) پلټنه او تالاشي یې وکړه نو لهٔ هغې څخه زښت ډېر توکي، وسلې ، مهمات او جنګي سامانونه د مسلمانانو لاس ته ورغلل، چې په دې توکو کې ټانګونه او ماشین

ګڼې، ټوپک، ډول ډول وسلې او نور جنګي سامان شتون درلود، دا د روم د جنګ جګړې آلات وو چې د کلا ګانو د محاصرې پر مهال کارېدلې، دا د یهودو په لاس جوړ شوې وسایل د رومیانو لاسته ورغلي وو.

**دبابه یعنې د لرګي ټانک**

امام ابن کثیر ﷫ په خپل البدایة والنهایة کتاب په ۲ ټوک ۱۰ مخ کې فرمايي: دبابه یوه اله ده چې لهٔ لرګي او پوستکي څخه جوړېږي او هغه دومره لویه وي چې په کې څومره انسانان سپاره شي او د دښمنانو تر کلاګانو پورې ولاړ شي او د دیوال لمنې ته یې ورسوي او همالته یې ودروي څو چې په هغې کې کېني او د دښمنانو په کلاګانو کې سورې وکړي او د دغه ټانک واله له هغو غشو څخه خوندي پاتې شي کوم چې د دښمن له خوا له کلاګانو څخه راویشتل کېږي.

امام ابن کثیر ﷫ فرمایي چې د سیدنا عمر ﷛ په حدیث کې راغلي چې: (**کیف تصنعون بالحصون؟ قال : نتخذ دبابات یدخل فیها الرجال. الدبابة آلة تتخذ من جلود وخشب یدخل فیها الرجال وقربونها من الحصن المحاصر لینقبوه وتقیهم ما یرمون به من فوقهم**).[1]

حضرت عمر فاروق ﷛ له یوهٔ لښکر څخه د دښمن د مقابلې په اړه د روانېدو په وخت کې پوښتنه وکړه چې تاسو د دښمن له کلاګانو سره څهٔ کوئ او هغه څهٔ ډول فتح کوئ؟ نو صحابه کرامو عرض وکړ چې د دبابې یعنې ټانګونه ورته جوړوو او زمونږ زلمیان په هغې کې دننه کېني په کلاګانو یې ورځي او هغه سورې کوي، او کوم غشي چې د دښمن له لورې څخه راځي له هغې خوندي پاتې کېږي. امام جلال الدین سیوطي ﷫ هم په الدر المنثور کې د دې تفصیل ذکر کړی دی.

دبابه خو تاسې وپېژندله چې د نن سبا په اصطلاح کې ورته ټانک ویل کېږي، توپیر یې یوازې دومره دی چې په پخوا وختونو کې دا د جګړې وسله له لرګیو او پوستکي جوړېدله او په دې زمانه کې لهٔ فولادو څخه جوړېږي. د حضرت سیدنا فاروق اعظم ﷛ د دې پوښتنې په ځواب کې چې (کیف تصنعون

[1] ـ البدایة والنهایة : ۲ ټوک ۱۰ مخ

بالحصون ) تاسې د دښمن سختې او کلکې کلاګانې څرنګه نیسئ؟ صحابه کرامو وویل چې (نتخذ دبابات یدخل فیها الرجال) مونږ دبابې جوړوو چې په دې کې خلک کېني او د دښمن کلاګانې سورئ کوي. دا د دې غوره دلیل دی چې دبابه یا ټانګ جوړول کومه ستونزه نه وه، مسلمان د اړتیا په وخت کې د دبابې چې اوس ورته ټانګ ویل کیږي په جوړولو باندې قادر وو.

**منجنیق یا د ډبرې ویشتلو وسله**

منجنیق هغې وسلې ته ویل کیږي چې د هغې پرمټ ډبرې ویشتل کیږي چې د نن په اصطلاح کې ورته ماشین ګڼ ویل کیږي. دا لغت لهٔ جنق څخه اخستل شوی دی او کوم څوک چې د دې آلې په وسیله ډبرې ولي هغهٔ ته جانق ویل کیږي. په روایاتو کې راغلي دي چې حجاج بن یوسف چې کله مکه مکرمه محاصره کړه، نو دهٔ د کعبې مبارکې مخامخ دوه منجنیق ودرول او دوه تنه یې د هغو د چلولو لپاره وټاکل.[1]

**د خبرو خلاصه**

د خیبر په غزا کې رسول الله ﷺ ته د یهودو د سختې او ټینګې کلا له فتح کولو څخه وروسته له دې کلا څخه یو څهٔ منجنیق لاس ته ورغلل کوم چې د رومیانو د جګړې آلات وو، له دې څخه وروسته چې کله د خیبر په دوو کلاګانو وطیع او سلالم کې د فتحې پر مهال ستونزې مخې ته راغلې او د ۱۴ ورځو له کلا بندئ وروسته هم دا کلا ګانې ونهٔ نیول شوې، نو د سیرت په کتابونو کې چې رسول الله ﷺ دا کلا ګانې د خدای په فضل سره د منجنیق له درولو پرته فتح او ونیول شوې.

په هر حال د رسول الله ﷺ د دغو شیانو د کارولو اراده د دوی د روا والي او مشروعیت دلیل دی. په ۸ هجري کال کې مکه مکرمه فتح شوه، د مکې معظمې له فتحې وروسته رسول الله ﷺ د طائف لورې ته روان شو او دولس زره ۱۲۰۰۰ صحابه کرام هم ورسره ملګري وو، طائف یې څهٔ دپاسه شل ۲۰ ورځې محاسره کړ ، کله چې په فتح کې ستونزې را پیدا شوې نو رسول الله ﷺ د سلمان فارسي رضی الله عنه په سلا دې کلا ته منجنیق ودراؤ. (وقال الواقدي: قالوا: شاور ﷺ أصحابه فقال له سلمان: یا رسول الله أرى أن تنصب المنجنیق

[1]. (نهایه : ۸ ټوک ۳٦١ مخ)

على حصنهم، فإنا كنا بأرضنا ننصب المنجنيقات على الحصون، وتنصب علينا فنصيب من عدونا، ويصيب منا، وإن لم يكن منجنيق طال الثواء بفتح المثلثة، أي الإقامة، فأمره صلى الله عليه وسلم فعمل منجنيقا بيده، فنصبه على حصنهم).[1]

واقدي وايي : د خلكو بيان دی چې د طائف په غزا کې رسول الله ﷺ لۀ صحابه کرامو سره سلا وکړه چې حۀ کول پکار دي؟ سلمان فارسي رضي الله عنه عرض وکړ چې زما رایه خو دا ده چې دغو دښمنانو ته دې منجنیق ودرول شي، ځکه چې کله مونږ د فارس په سیمه کې وو او لۀ دښمن سره مقابله راتله نو مونږ د دوی د مقابلې لپاره منجنیق دراوۀ، او دوی به زمونږ د مقابلې لپاره منجنیق جوړاوۀ چې په جګړه کې به دوی هم تیپیان کېدل او کله به مونږ هم تیپیان ورکول. له دې امله زما نظر دا دی چې د طائف د خلکو د مقابلې لپاره دې منجنیق جوړ کړای شي که نه نو دلته مقاومت او مقابله به نوره هم اږده شي. نو رسول الله ﷺ سلمان رضي الله عنه ته امر وکړ چې منجنیق جوړ کړي، حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه منجنیق جوړ کړ او د هغوی کلا ته یې ودراوۀ.

په مسند امام احمد او سنن ابو داود او نسائي کې راغلي چې د مکې مکرمې له فتحې وروسته کله چې رسول الله ﷺ د هوازن خوا ته مخه کړه نو له دوی سره د وسلو کمی وۀ، رسول الله ﷺ سل ۱۰۰ زغرې له ساز او سامان سره لۀ صفوان بن امیه څخه وغوښتلې. صفوان بن امیه په هغه وخت کې کافر او مشرک ؤ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : " ای ابو امیه د دښمن د مقابلې لپاره زمونږ وسلې پکار دي، یو څۀ اندازه وسلې مونږ ته راکړه چې د هغوی د بېرته ورکولو زه ضامن یم.

او علامه سهیلي فرمایي : چې یوه ځل رسول الله ﷺ له نوفل بن حارث بن عبد المطلب څخه درې زره نېزې د امانت پۀ توګه یوړې، او ویې وفرمایل چې " زه وینم چې دغه نېزې د کافرانو او مشرکانو ملاوې ورماتوي.[2]

لۀ دې بیان څخه څرګنده شوه چې د اړتیا په وخت کې لۀ کافرانو څخه وسلې د امانت په توګه اخستل روا دي، او کله چې په خواست روا شو نو ورته

[1] . شرح الزرقاني على المواهب اللدنية بالمنح المحمدية : ۴ ټوک ۱۰ مخ
[2] . زرقاني شرح مواهب : ۳ ټوک ۴۹۹ مخ

اخستل خو يې په اولی درجه روا دي. غرض دا چې رسول الله ﷺ لۀ غشي او تورې ځخه پرته نورې وسلې هم کارولي دي، او صحابه کرامو ته يې د هغو د جوړولو حکم هم ورکړی دی.

لۀ رسول الله ﷺ ځخه وروسته چې کله فاروق اعظم ﵁ ته د شام او عراق ستونزه مخې ته راغله نو دۀ ﵁ د دښمنانو د مقابلې لپاره د واک د فراهم کولو قطعي حکم ورکړ. اوس که کوم اسلامي حکومت له دی ځخه غفلت کوي نو دا يې خپله ګناه ده، په دې برخه کې اسلام ګرَم نۀ دی.[1]

**د صنعت او حرفت ځانګه**

د دنياوي اړتياو د بشپړولو لپاره چې کوم صنعت او حرفت ته ضرورت شته هغه شرعاً په مسلمانانو باندې فرض على الکفاية دی، ځو چې د مسلمانانو دنياوي اړتياوې د مسلمانانو په لاس جوړ شوي وسايلو باندې پوره شي او کافرانو ته اړ پاتې نه شي . د رسول الله ﷺ ارشاد دی چې د حلال کسب پر مټ د روزۍ لاس ته راوړل له خدايي فريضې ځخه وروسته فرض دی.

هغه صنعتونه چې له هغو ځخه پرته د خلکو کار نۀ شي چلېدلای؛ د بېلګې په توګه ترکاڼي ، موچی توب ، بزګري ، انجينيري او داسې نور. دا ډول کارونه او د دوی زده کړه او ښوونه په مسلمانانو باندې فرض ده. انبياء کرامو ﵈، صحابه کرامو ، تابعينو ، اولياء کرامو ، متقيان او بزرګانو خلکو له حلالې دندې او کاروبار ځخه روزي لاس ته راوړې ده ، او په دې کې يې ځه پيغور هم نه ليدۀ.

په نړۍ کې تر ټولو لومړۍ کښتۍ حضرت نوح ﵇ جوړه کړه، لکه ځنګه چې الله ﷻ فرمايي: ﴿فَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِ أَنِ ٱصْنَعِ ٱلْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا﴾ المؤمنون :۲۷

ژباړه : زمونږ تر ځارنې لاندې او زمونږ له وحيې سره سم بېړۍ جوړه کړه.

---

[1] . د علامه محمد ادريس کاندهلوي له وينا ځخه

همدا ډول په قرآن کریم کې راغلي دي چې داود ﷺ زغرې جوړولې او د خپل لاس له مزدورۍ څخه یې خواړه لاس ته راوړل. الله تعالی فرمایي: ﴿وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ﴾ الأنبياء : ۸۰

ژباړه : او مونږ هغهٔ ته ستاسې د ګټې لپاره د زغرې جوړولو هنر ښودلی ؤ، تر څو چې تاسې یو د بل د ګوزار څخه وژغوري.

نو له همدې امله د هر صنعت او کسب پراختیا او وده او ترویج د اسلامي حکومت فریضه ده څو چې د خلکو اړتیاوې پوره شي او په هېڅ کار کې مسلمان د کافر لاس ته ونهٔ ګوري.

**عامه ګټې ( رفاه عامه )**

په اسلامي شریعت کې عامه ګټې؛ مثلا د سړکونو او پلونو ودانول او د بېوسو او بېوزلو خلکو سره مرسته د اسلامي ریاست حکومت له دندو څخه دي، د دې احکامو هم د فقهې شریفې په کتابونو کې په بشپړ ډول ذکر شوي دي.

**د پراختیا او بیا رغونې اداره**

کله چې کافرانو مسلمانانو ته د دوی له ځمکو څخه د شړلو ګواښ وکړ، نو په دې اړوند الله تعالی دا آیت نازل کړ. ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُم مِّنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِن بَعْدِهِمْ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ﴾ إبراهيم : ۱۳، ۱٤

ژباړه : کافرانو خپلو پیغمبرانو ته وویل : تاسې به بېرته زمونږ دین ته را اوړئ که نه نو مونږ به تاسې له خپل هیواد څخه وباسو. په دې وخت کې د هغو رب هغو ته وحیې ولېږلې چې : مونږ به دغه ظالمان هلاک کړو؛ او له هغو وروسته به تاسې په ځمکه کې مېشته کړو. دا د هغه چا مکافات دي چې زما په وړاندې له ځواب ویلو څخه وېره لري او زما د عذاب له ګواښ څخه ډارېږي.[1]

---

[1] . دستورالاسلام: ۱۴۵ مخ

**د ټولنې اصلاح او سمون**

په اسلامي حکومت کې د ټولنې د سمون لپاره نکاح ، نفقه، جامه ، ښوونه او روزنه او دا ډول نورې اړتیاوې، مسئلې او حکمونه په تفصیل سره موجود دي. او داسې هېڅ یو د فقهې کتاب نشته چې دا ډول احکام په کې شتون ونهٔ لري .

**د عملونو او خویونو اصلاح ، یا (امر بالمعروف ونهي عن المنکر)**

د اسلامي حکومت د دستور او قانون یو مهم اصل د امر بالمعروف او نهي عن المنکر یعنې په نېکو کارونو د امر کولو او له بدو کارونو څخه له منع کولو ځانګه ده، کومه چې د خلکو د اخلاقو او اعمالو د اصلاح لپاره تشکیلېږي.

د نن سبا په حکومتونو کې د ټولنې د اصلاح، او د اخلاقو او اعمالو د سمون په برخه کې نه کومه ځانګه شته او نه کوم مرکز شته، شپه او ورځ په بدکاریو او بې حیایي کې زیاتوالی راځي، او د اسلامي ټولنې بډایه خلک او غنیان د لویدیځو هیوادونو پهٔ پل باندې روان دي. الله تعالی دې پر مونږ ورحمېږي. آمین.[1]

**آرام ځایونه او میلمستونونه**

اسلام حکومت او افرادو ته د دې حکم ورکړی چې ځای پرځای دې مېلمستون او مسافرخانې جوړې کړي، څو چې مسافرو ته په سفر کې اسانتیاوې برابرې شي او شخصي هوټلونو ته چې په لوړه بیه ورته لوېږي؛ اړتیا پیدا نهٔ شي، ځکه چې له هر سړي سره خو دومره لګښت نهٔ وي چې هغه کرایه پرې ادا کړي. (الحوالة المذکورة )

**پولیس په اسلام کې**

پولیس هم د حکومت یوه ځانګه ده خو د پولیسو او پوځ ترمنځ توپیر دا دی چې پوځ د بهرني امن د ساتنې لپاره دي او پولیس د کورني امن د ساتنی لپاره دي، چې د مملکت په دننه کې د ولس ځان، مال او ابرو خوندي کړي او له غلو او لارې وهونکو څخه د ولس ساتنه وکړي. او د پولیسو فریضه دا ده

---

[1] . دستورالاسلام :۱۴۴ مخ

چې له ورځې څخه زياتره په شپه کې د ښاريانو ساتنه وکړي. خو اوس حال دا دی چې که کوم ښوزله غم ځپلی د پوليسو لورې ته وګرځي، پر ځای د دې چې ورپېښه شوې ستونزه يې حل شي؛ نور هم له ستونزو او کړکېچونو سره مخ کېږي.[1]

## زندان يا محبس

محبس يا زندان د هغه ځانګړي ځای نوم دی چېرته چې مجرم د سزا په ډول خوندي کړل کېږي، او مجرم هغه دی چا چې سره له پوهې د حکومت د قانون خلاف ورزي کړې وي. په قرآنکريم کې د لاره وهونکيو په اړه داسې توري راغلي دي: ﴿اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ﴾ المائدة : ۳۳، يعنې؛ يا دې له وطنه وشړل شي، له دې څخه قيد او حبس مراد دی.[2]

## د اسلام مالياتی نظام

کوم خلک چې له ديني زده‌کړې بې برخې او د لويديځوالو لۀ زده‌کړې څخه برخه مند وي، هغه خلک د اسلام د دين په اړه د ډول ډول شکونو او تېروتنو ښکار شوي دي چې د هغوی له جملې څخه يوه شبه او شک دا دی چې اسلام د مالياتو او اقتصادياتو کوم نظام نه دی وړاندې کړی.

ټولې نړۍ ته څرګنده ده چې د حجاز، نجد او يمن ټوله سيمه او د بحرين علاقه د رسول الله ﷺ په مبارک ژوند کې فتح شوی وه، چې دا يو ډېر لوی مساحت وۀ، يوۀ لورې ته صنعاء او عدن پورې سيمه او بلې خوا ته د تبوک ټوله سيمه چې د هغې سرحد لۀ شام سره وصل کېږي د اسلام تر ولکې لاندې راغلې وه، او کوم خدای پاک جل جلاله چې خپل دوست نبي عليه السلام او د اسلام بې سروسامان درويشانو ته پرته لۀ کوم مادي طاقت د څو کلنو په موده کې په دومره اوږده او سوروره سيمه باندې واکمني او حکمراني ورپۀ برخه کړه؛ همدغه خدای پاک جل جلاله د دغه سلطنت د مالي او اقتصادي نظام لپاره له اسمان څخه احکام هم نازل کړل.

---

[1] . دستور الاسلام: ۱۴۷ مخ

[2] . دستورالاسلام : ۱۴۸ مخ

لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ له خدايي حکم سره سم د مسلمانانو له مالونو او ځمکو څخه زکاة او عُشر واخستل، او له کافرانو څخه يې خراج او جزيه واخستله، او د دې راټولولو لپاره يې کار کوونکي او راټولوونکي وټاکل، او د ولسونو د دعوې ګانو د فيصله کولو لپاره يې قاضيان او واليان وټاکل، او د مسلمانانو د ښوونې او روزنې لپاره يې قاريان او حافظان وټاکل، چې هغو ته يې معاشونه او تنخواګانې هم ورکولې، او له هجرت څخه ورسته يې تر لسو کلونو پورې له کافرانو سره جنګونه هم وکول، او سولې يې هم وکړې، او د جنګ لپاره يې پوځيان هم وروزل، او وسلې يې هم وکارولې. آيا د دومره اوږدې او سوروری سيمې، کورنی او بهرنی نظام د کوم مالي نظام څخه پرته چلېدای شي؟

له دې امله مونږ په ډېر لنډيز سره د اسلام د مالياتي نظام يوه اجمالي ټوټه وړاندې کوو؛ څو چې خلک د اسلامي لاسته راوړنو له مغربي لاسته راوړنو سره موازنه وکړي او دا معلومه کړي چې؛ اسلام چې په ولسونو باندې کوم محصولات لګولي هغه ډېر کم او ښځي لږ دي، او د رعيت د خلاصون او فارغ الذمة کولو کفيل او ضامنان دي، اسلامي حکومت په رعيت باندې يوازې د اړتيا په اندازه ماليه ټاکلې ده چې په هغو باندي د حکومت چارې پر مخ لاړې شي، او پرته له هغه څخه يې د ملک ټول پيداوار او امدن د رعيتونو د منافعو او ګټو لپاره پرېښی دی، څو چې ولسونه داسې آرام حال واوسېږي چې ورته د کوم بانګ او يا د کومې غير شرعي معاملې اړتيا پاتې نهٔ شي.

او د دې برعکس د نن سبا پرمخ تللي حکومتونو خپل ولسونه په ټکسونو او محصولونو کې دومره کلک بند کړي او تړلي دي چې د وينو او خولو له تويېدلو څخه ورسته ولس ته له خپلې کرهنې ، سوداګرۍ، تجارت ، کسب او صنعت ته يوازې د بسنې په اندازه پاتې شي، نور حاصلات او د امدن لويه برخه حکومت ته ورسېږي.

او د دې مليارډو حاصلاتو د محصولاتو لويه برخه؛ د هغو خلکو په برخه کې راځي چې له حکومت سره تړلي وي او نور عام ولسونه له دې منافعو او ګټو څخه محروم او بې برخې پاتې کېږي. اوس د اسلامي حکومت آمدني او عائداتي سرچينې له دې سره پرتله کړئ:

حکومتي سرچينې په لاندې ډول دي :

په دې سلسله له ټولو څخه لومړی کتاب؛ کتاب الخراج دی ، کوم چې د سیدنا امام اعظم ﷺ رشید شاگرد امام قاضي ابو یوسف ﷺ د خلیفه هارون رشید په وړاندیز ولیکلو، او وړاندی یی کړ چی په کې یي د حکومت تنظیمولو، آبیاریَ او د محصولاتو په انتظام، او د جرمونو په قوانینو باندې مفصله خبره کړې ده. په دې لړ کې دا لومړی کتاب دی، لۀ دې څخه ورسته چې کوم علماء راغلل؛ هغوی د اسلام په مالیاتي نظام باندې مفصل کتابونه ولیکل، د هغو له جملې یو مفصل کتاب؛ کتاب الاموال دی چې مصنف یې امام ابو عبید قاسم بن سلام دی.

رسول الله ﷺ چې کوم مالونه په یوځي چارو کې، په فقیرانو مسکینانو او د نورو مصالحو او عامه گټو او د مسلمانانو د فائیدو لپاره او په ملکي نظام باندې لگول؛ د هغو عائداتي سرچینې په لاندې ډول دي :

١. زکاتونه او صدقات

٢. عشر؛ یعنې د حاصلاتو لسمه یا شلمه برخه.

٣. د غنیمتونو خمس؛ یعنې د ولجو او غنیمتونو پنځمه برخه.

٤. د فیئ مال؛ فیئ هغې ترلاسه شوي مال ته وایي چې له دښمن څخه پرته له کومې مقابلې لاسته راوړي.

٥. خراج؛ یعنې چې د کافرو له کروندو څخه اخستل کیږي.

٦. جزیه؛ یعنې چې له کافرانو څخه د هغوی په هیواد کې له هغو څخه د اوسېدو د قیمت اخستل.

٧. زېرمې ، خزانې او دفائن؛ یعنې کانونه پټې خزانې چې پۀ کې د سرو او سپینو، او نور کانونه او د تیلو چینې هم شامل دي.

٨. شاړې ځمکې؛ چې ورته په شریعت کې اراضي موات ویل کیږي.

٩. اقطاعات؛ یعنې جاگیرونه.

١٠. د تجارت او سوداگریَ محصولات؛ یعنې محصول او گمرک، کوم چې د تجارتي مالونو په واردولو او صادرولو باندې اخستل کیږي.

د دغو ټولو ډولونه او احکام د فقهي شريفې په کتابونو کې په بشپړ ډول ذکر دي، او د اړتيا په اندازه په الاحکام السلطانيه کتاب کې مذکور دي، همالته دې ولټول شي، او فقهاء کرامو د دې عوائدو مفصل بيانونه کړي دي.

**نوی محصول**

دلته يو سوال پيدا کيږي چې آيا حکومت ته د دغو تېرو شويو محصولونو څخه پرته د بل نوي محصول د لګولو حق شته او که نشته؟

ځوا ب دا دی چې نشته، شريعت چې څومره محصولونه روا کړي دي د حکومت د چارو د چلولو لپاره دي، او که دا وويل شي چې په موجوده حالاتو کې حکومت ته چې کوم دفاعي او جنګي ضرورتونه وړاندې راځي هغه به له کومه پوره کيږي؟

د دې ځواب دا دی چې حکومت دې له بې قانونه او بې ځايه لګښتون څخه ډډه وکړي او د عيش او عشرت سامانونه دې پرېږدي او د حکومت د عاملانو کارمندانو او مامورينو معاشونه دې وار ترمخه دومره نه لوړوي چې ورته په عامو مسلمانانو باندې بوج او بار واړول شي.[1]

**د سوداګرۍ محصولونه**

يعنې د سوداګريز مال صادرولو او واردولو محصول : د اسلامي عائداتو څخه يو هم د سوداګرۍ په مالونو باندې محصول دی چې ورته عشر ويل کيږي، او د نن په اصطلاح کې د دهٔ نوم کسټم او ګمرک دی. له مسلمان سوداګر او تجارت کوونکي څخه د مال څلوېښتمه برخه ده، او له کافر ذمي څخه يعنې چې په دار الاسلام کې اوسيږي او جزيه ورکوي؛ د هغه د مال شلمه برخه د محصول په ډول ورڅخه اخستل کيږي، او د کافر حربي کوم چې په دار الحرب کې اوسيږی؛ له مال څخه لسمه برخه اخستله کيږي.

له ټولو څخه وړاندې دا محصول حضرت فاروق اعظم ﵁ جاري کړ، او ټولو صحابه کرامو د هغوی موافقت وکړ.[2]

---

[1] . د مولانا محمد ادريس کاندهلوي له وينا څخه

[2] . بنايه شرح هداية الزکوة :۱۲۲ مخ

**د ګاندي يوه عجيبه وينا چې د مسلمانانو مشران ترې محروم دي؛**
ګاندي خپلو وزيرانو ته د حضرت صديق اکبر ﷺ او د حضرت عمر فاروق ﷺ د اتباع نصيحت.

په (۳۵) سنه کې د ګاندي له خوا د کانګرس وزيرانو په نوم هدايت نامه جاري شوه چې "زه خپلو وزيرانو ته هدايت او نصيحت کوم چې د ابو بکر او عمر په لاره دې وچلېږي".

څرګنده شوه چې د ګاندي (کوم چې هندو کافر او د هندوستان پاچا وۀ د هغۀ) په نظر د صديق اکبر او عمر فاورق ﷺ د حکمرانی او عدالت داسې پاک دستور او مطهر قانون د هستې په مخ باندې اوس هم موجود او محفوظ دی. د امريکې او برطانيې دستور او قانون د هغه ګرد او غبار ته هم نه شي رسېدلی، او دا هغه دستور او قانون دی کوم چې خلفاء راشدينو له قرآن او حديث څخه زده کړی وۀ. ګاندي پاچا په خپله هدايت نامه کې د صديق اکبر او فاروق اعظم ﷺ په تګلاره باندې د تللو هدايت ورکړ خو د امريکې او برطانيې په تګلاره يې لارښوونه ونۀ کړه، لامل يې دا وۀ چې د صديق اکبر او فاروق اعظم ﷺ د خلافت دوره د سيدنا داود او سليمان على نبيّنا وعليهما السلام او د ذو القرنين د حکومت بېلګه وه، او د امريکې او برطانيې او د روس حکومتونه د نمرود، بخت نصر او فرعون د حکومتونو بېلګې او بلکې له هغې څخه هم زياتی پۀ کې شوی دی. نو کله چې يو هندو سادو خپلو وزيرانو ته د صديق اکبر او فاروق اعظم ﷺ په لاره باندې د تللو هدايت کوي نو آيا يو مولوي او ديني عالم دا حق نۀ لري چې هغه د ايماني او اسلامي دعوت پر بنسټ خپلو مسلمانانو ورنو وزيرانو ته د صديق اکبر، عمر فاروق، عثمان او علي ﷺ په لاره باندې د تللو هدايت وکړای شي؟

له خلفاء راشدينو وروسته د بني اميه خلفاو او عباسيه خلفاو د حکومتونو له دور څخه کتنه وکړئ، او بيا د سند فاتح، د سلطان محمود غزنوي، د سلطان صلاح الدين ايوبي او د سلطان نور الدين په حکومتونو نظر واچوئ چې دې حضراتو په بې مثاله جاه او جلال سره يې حکومت وکړ، د دنيا تاريخ د هغۀ شاهد دی، کاش چې څوک راوښايي چې د دغو د نيا د فاتحانو دستور او قانون له اسلام څخه پرته بل څۀ وۀ.

د مغلو د پاچاهانو په وروستنۍ دوره کې سلطان غازي اورنګ زیب عالمګیر ﷫ د شریعت او قانون یوه لویه عظیم الشان مجموعه ترتیب کړه چې د فتاوای عالمګیري په نوم په هندوستان او مصر کې خپره شوه.

سلطان عبد الحمید خان ﷫ په خپله زمانه کې منتخب علماء کرام راټول کړل د مجله عدلیه په نوم یې یو شرعي قانون ترتیب کړ چې پهٔ کې د اوسني قانون په ډول په شمېرو مادې جوړې شوې او په ټول ملک کې هغه قانون جاري شو، چې ټول قاضیان او وکیلان له هغې سره سمې فیصلې کولای شي، او د دې مجلې بشپړې شرحې لیکل شوي دي، آن دا چې غیر مسلمو وکیلانو هم د هغې شرعي قانون شرحې ولیکلې. دا شرحې د بیروت او دمش له کتابتونونو څخه لاس ته راتلای شي.[1]

## د خلفاء راشدینو ﷺ غوره ویناوې

### د لومړي خلیفه حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د لومړۍ خطبې یوه برخه

رښتیا ویل امانت دی او دروغ ویل خیانت دی، ستاسې کمزوري او ضعیف شخص زما په وړاندې قوي او غښتلی وي تر هغه پورې چې زه د هغهٔ حق هغهٔ ته وسپارم، او ستاسې غښتلی او قوي شخص به دلته کمزوری او ضعیفه وي تر هغه پورې چې له هغهٔ څخه د مظلوم حق واخلم.

**د ابو بکر صدیق ﷺ ځینې غوره ویناوې؛**

١. هر بې علمه عمل یو رنځ وګڼئ، او بې عمله علم یو بې ګټې شی.

٢. علم د پیغمبرانو ﷺ میراث دی، او شتمني د کافرانو (فرعون او قارون).

٣. خبر وسئ! چې جهاد پرې نږدئ، ځکه هر قوم چې د الله تعالی په لار کې جهاد پرېږدي؛ هغه خوار او ذلیل ګرځي.

٤. هغوی چې اخرت لپاره دنیا پرېږدي منلي نهٔ دي، بلکې منلي هغه خلک دي چې د دنیا او اخرت دواړو حق پر ځای کړي.

[1] . نظام الإسلام – محمد ادریس کاندهلوي : ٢٣١ مخ

## د دویم خلیفه حضرت عمر فاروق ﷺ د خلافت د لومړۍ خطبې یوه برخه

زه ستاسي لپاره یو ازمېښت یم او تاسي زما لپاره، زه د دوو تېرو ملګری یم، یو حضرت رسول الله ﷺ او بل حضرت ابو بکر صدیق ﷺ، زه د ابو بکر صدیق ﷺ څخه وروسته خلیفه شوی یم. هغه خلک چې له مرکز څخه لېرې دي؛ زۀ په هغو یو دیانتدار حاکم ټاکم، هغه څوک چې نېکي کوي مونږ لۀ هغو سره احسان کوو، او هغه خلک چې د جرمونو مرتکب کېږي هغو ته سزا ورکوو، الله تعالی دې ما ته او تاسې ټولو ته مغفرت وکړي.

### د عمر ﷺ له غوره ویناو څخه؛

١. لږه وینا پوهه، کم خوارۀ روغتیا او لږ خوب عبادت دی.

٢. په انسان کې لس خویونه ښه وي او یو بد، نو دغه یو ناسم خوی د هغۀ نهۀ سم خویونه په اوبو کې لاهو کولای شي.

٣. ای خلکو ! ولې مو انسانان د ځان غلامان کړي دي، په داسې حال کې چې خپلو میندو ازاد او خپلواک زېږولي دي.

٤. د بد اخلاقو له ملګرتیا څخه ډډه وکړئ، که درسره ښېګڼه کول هم غواړي نو بدي ترې کېږي.

٥. د ظالم ښنل، له مظلم سره ظلم دی.

٦. د نېکۍ په مقابل کې نېکي، د پور لنډول دي، خو د بدي پۀ وړاندې نېکي کول احسان دی.

٧. هر شی ښکلا لري، د نېکۍ ښکلا دا ده چې سم دستي وشي.

٨. ځواني تر زړښته او ژوند تر مرګه وړاندې غنیمت وګڼئ.

٩. د دنیا عزت په مال کې دی او د اخرت عزت په اعمالو کې.

١٠. له نورو سره تر محاسبې دمخه له ځان سره محاسبه وکړئ.

## د درېیم خلیفه حضرت عثمان ﷜ له غوره ویناو څخه

١. الله تعالی تاسي ته دنیا یوازې د دې لپاره درکړې ده چې اخرت پرې وغواړئ.

٢. زهٔ خو د ځان لپاره دا ډېره بده ګڼم چې ورځ راباندې تېره شي او د قرآن کریم تلاوت په کې ونهٔ کړم.

٣. خپل پېټی په بل مهٔ اچوئ.

٤. توره بدن تېپي کوي او بده وینا روح.

٥. له الله تعالی څخه پرته له هېچا تمه او وېره مهٔ کوئ، یوازې لهٔ خپلو ګناهونو څخه وډار شئ.

٦. څوک چې د انسان حق ونهٔ پېژني، هغه ګویا د الله تعالی حق نهٔ دی پېژندلی.

٧. الله تعالی هر وخت له ځای سره ګڼل تر ټولو غوره ایمان دی.

٨. ټولې نېکۍ له حیا او ټولې بدۍ له بې حیایۍ سره تړلې دي.

٩. سخاوت د مال، او عمل د علم او د الله ﷻ د اخلاص میوه ده.

١٠. د مسلمانانو ذلت د مال نشتوالی نه، بلکې د مذهب له سر غړونې راپیدا کیږي.

١١. افسوس د هغه چا په حال چې حساب حق ګڼي، او مال راټولوي.

١٢. هغه علم بې ګټې دی چې عمل پرې ونهٔ شي، او هغه مال بې ګټې دی چې پهٔ ښو چارو ونهٔ لګول شي.

## د څلورم خلیفه حضرت علي ﷜ د خلافت د خطبې یوه برخه

الله ﷻ د هدایت او لارښوونې کتاب را نازل کړی دی، نېک کارونه کوې او له بدو کارو څخه ځان وژغورئ او د فرائضو پابندي وسئ، نو الله ﷻ به تاسو ته جنت در کړي. الله ﷻ د څو شیانو حرمت ویلی دی چې نامعلومه نه دي خو هغه ﷻ په ټولو حرمتونو د مسلمان حرمت ته فضیلت ورکړی دی او هغهٔ مسلمانانو ته د یو والي او اخلاص پر بنسټ قوت ښلی دی، مسلمانان

هغه دي چې د هغو د ژبې او لاس له شر څخه خلک خوندي وي، يو مسلمان ته ناحقه تکليف ورکول روا نه دي پرته له هغې سزا څخه چې دهٔ ته يې ورکول واجب وي، څکه خلک له تاسې څخه وړاندې لاړل او مرګ په تاسې پسې هم را روان دی، خپل باورنه کم کړئ، دا په دې خاطر چې مخکې تلونکي د وروسته راتلونکي انتظار کوي، د الله ﷻ بندګان له هغهٔ څخه وېربږي، د الله ﷻ د بندګانو د حق تلفي په اړه به لهٔ تاسې څخه پوښتنه وشي، د څناورو په هکله به هم له تاسې څخه پوښتنه وشي.

**د امير المؤمنين حضرت عمر بن عبد العزيز ﷺ ژوند ته لنده کتنه**

امير المؤمنين حضرت عمر بن عبد العزيز ﷺ د خپلې اموي کورنۍ د ناروا شتمنيو د بېرته اعادی اعلان وکړ، خپل عائدات يې لږ کړل او د مسلمانانو ترمنځ د اسلامي حقوقو پلې کېدو ته يې پام واړو.

په نه نوي (٩٩) هجري سپوږميز کال کې د سليمان بن عبد الملک اموي د وصيت له مخې عمر بن عبد العزيز د امويانو خليفه وټاکل شو، دهٔ په خپله لومړنۍ خطبه کې رسماً اعلان وکړ او ويې ويل چې (بې له دې چې ما غوښتی وای يا زما له نظر څخه پوښتنه شوی وای يا د نورو مسلمانانو څخه مشوره اخستل شوې وای، د دی حکومت په ازمېښت کې واچول شوم، ستاسې په غاړه کې چې د بيعت کړۍ درلوېدلې ده هغه لمنځه وړم، اوس په هرډول چې تاسې غواړئ د خپلو چارو لپاره رهبر وټاکئ) ټولو حاضرينو خلکو په لوړ اواز سره وويل چې؛ مونږ تا منو، او ستا حکومت غواړو، او ته د دې حکومت مسؤليت ومنه. او ويې ويل چې؛ (د خدای ﷻ پيغمبر ﷺ او ددين د کتاب په هکله اختلافات نشته بلکې اختلافات د (درهم) او د (دينار) په شاوخوا کې دی. په خدای ﷻ لوړه کوم چې نه به زه هغه پيسې په ناروا ډول و چاته ورکړم، او نه به دچا د روا حق مخه ونيسم) خلکو وويل: څوک چې د خدای ﷻ اطاعات کوي دهغه اطاعت واجب دی، او هغه چې دخدای ﷻ اطاعت ونه کړي دهغه لپاره اطاعت نشته، عمربن عبدالعزيز وويل: (ترڅو چې د الله ﷻ مطيع يم زما اطاعت وکړئ او که مې نافرماني وکړه زما اطاعت په تاسو لازم نهٔ دی).[١]

[١]. (پاچهانو څه کول :٢٣٩ مخ)

### د حضرت عمر بن عبد العزیز یوه بله اعلامیه

جناب مرحوم په دې اعلامیه کې له خلکو وغوښتل؛ که څوک د امویانو د شاهي خاندان په افرادو دعوې لري هغه دې اقامه کړي، څو غصبي مالونه بېرته خپلو اصلي څښتنانو ته ورسېږي.[1]

### د عمر بن عبد العزیز د پاچاهۍ په حال کې هستوګنه

له مسلمه څخه روایت دی هغه فرمایي : چې زه د حضرت عمر بن عبد العزیز د ناروغۍ پوښتنې ته ورغلم د دهٔ په غاړه کې یو خیرن قمیص ؤ، خپلې خور فاطمې بي بي ته مې وویل : د امیرالمؤمنین دغه قمیص ومنیځه ترڅو یو پاک قمیص ور واغوندې، نو هغې راته وویل ښه ده ان شاء الله، خو په سبا چې ورغلم بیا مې خور ته وویل چې ګوره قیمص خو په خپل حال دی، ما تاسو ته پرون وویل چې خلک د امیر المؤمنین پوښتنې ته راځي نو یو پاک قمیص ور واغوندئ. نو هغې راته په قسم وویل چې د امیر المؤمنین بل قمیص نشته، همدا یو قمیص لري چې په غاړه یې دی. او په یوه روایت کې راغلي چې دا قمیص شلېدلی هم وهٔ.

### د حضرت عمر بن عبد العزیز د زهد او پرهېزګارۍ یوه بله بېلګه

له مالک بن دینار څخه روایت راغلی چې عمر بن عبد العزیز به ویل؛ چې له دنیا څخه مې هېڅ رقم نهٔ ده پرېښی، مګر په زړهٔ کښې مې چې کوم شی ښه راغلی دی هغه زهد دی، او د دین ستر نعمت متعال خدای جل جلاله ما ته را په برخه کړی دی.

مالک بن دینار فرمایي ما ته ابو امیة د حضرت عمر بن عبد العزیز غلام روایت کړی دی، چې هغه فرمایي : یوه ورځ خپل بادار ته ورغلم نو د نسکو پیتي یې د دوډۍ سره راکړه، نو ما ورته وویل : هره ورځ د نسکو پیتي؟ نو هغه راته وویل : بچیه دا ستا د بادار امیر المؤمنین خوراک دی.[2]

---

[1] . پاچهانو څه کول کتاب: ۲۴ مخ
[2] . د حضرت عمر بن عبد العزیز سیرت، تالیف عبد الرحمن ابن جوزي: ۲۰۳ مخ

**د خپلوکالیو په انتظار وم ترڅو پریمنځل شي او زه منبر ته پرې پورته شم**

راوي فرمايي : مونږ ته نعیم وویل چې ما لهٔ عمر بن عبد العزیز څخه پوښتنه وکړه چې دلته ولې ناست یې؟ نو هغهٔ راته وویل چې د خپلو کالیو ته په تمه یم چې ترڅو پریمنځل شي او زهٔ پهٔ کې منبر ته د وعظ او وینا لپاره پورته شم. نو ما ورته وویل: څهٔ ډول کالي دي؟ هغهٔ راته وویل : قمیص ، لنګ او څادر دی، چې ټول قیمت یې څورلس روپۍ دی. (الحوالةالمذکورة)

**د عمر بن عبد العزیز د سیرت او عمل واقعات څرنګه خلکو ته نقل شوی؟**

مالک بن دینار فرمايي : کله چې حضرت عمر بن عبد العزیز رحمة الله علیه خلیفه شو، نو د خلافت په قلمروکې ټولو شپنو د غرونو په څوکو کې وویل : دا څومره صالح خلیفه په خلکو وټاکل شو! چا ورته وویل چې تاسو څهٔ خبر شوي یاست؟ نو دوی په ځواب کې ورته وویل : پهٔ دې پو هیږو چې څهٔ وخت په مسلمانانو کې یو صالح خلیفه تعین شي نو زمریان او لیوان زمونږ له پسونو بزو څخه بندیږي او برید پرې نهٔ کوي.[1]

**په الله قسم دی چې ایله اوس هوسا شوم**

لهٔ محمد بن نضر الحارثي څخه روایت دی هغه وايي چې مسلمة بن عبدالمالک حضرت عمر بن عبد العزیز له مرګ څخه وروسته په خوب ولید، دی وايي ما ورته وویل چې ای امیر المؤمنین ! کاشکې چې زهٔ پوه شوی وای چې له مرګ څخه وروسته ستا څهٔ حال دی؟ نو هغه راته وویل ای مسلمة دا اوس مې خلاصبدل دي، قسم په خدای ﷻ چې تر اوسه نه یم دمه شوی. نو بیا مې ورته وویل اوس چېرته اوسیږې ای امیرالمؤمنین؟! هغه راته وویل د د هدایت او لار ښوونکو پیشوایانو سره د جنتونو په منځ کې، چې په جنت عدن ترې تعبیر کیږی.[2]

[1] . د عمر بن عبدالعزیز سیرت : ۱۰۶ مخ
[2] . د عمر بن عبدالعزیز سیرت : ۳۱۴ مخ

## په خپله واکمنۍ کې یې د دوه تنو په څېر کار وکړه

وايي عراک بن حجرة مونږ ته د عمر بن عبد العزيز څخه روايت کوي هغه وايي چې ما جناب رسول الله ﷺ په خوب کې وليد، ما ته يې وويل : را نېږدې شه ای عمره! زهٔ ورنېږدې شوم او مصافحه مې ورسره وکړه (لاسونه مو سره ورکړل). بيا زهٔ تر دې اندازې ورنېږدې شوم چې زنګنونه مې د دهٔ مبارک زنګنو ته ورسيدل، بيا يې راته وويل : ای عمره! په خپله واکدارۍ کې د دوه کسانو په مثل عمل وکړه. ما ورته کتل چې د پاخهٔ عمر دوه تنه د دهٔ مبارک ترڅنګ ولاړ وو، ما پوښتنه وکړه چې دا څوک دي؟ هغهٔ ﷺ راته وويل : دا ابوبکر صديق او عمرفاروق رضي الله عنهما دي.[1]

## عمر بن عبد العزيز رحمه الله غوره اخلاق درلودل

مصنف رحمة الله عليه فرمايي : ماته سهيل له عمر بن حفص څخه او هغه له يوه شيخ څخه روايت کړی: کله چې عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خليفه شو نو د شپې ګزمې ته ووت، او ورسره ساتونکي هم ملګري وو، کله چې جومات ته ننوت نو په تياره کې يې په يوه ويدهٔ سړي پښې کېښودې او پرې وښوئيبدهٔ، هغه سړی سر راپورته کړ او ورته ويې ويل : تهٔ ليونی يې؟ نو دهٔ ورته وويل: نه، د هغه سړی په هکله ساتونکو د وهلو اراده وکړه، نو عمر بن عبد العزيز رحمه الله ورته وويل : کار پرې مهٔ لرئ، دهٔ لما څخه پوښتنه وکړه؛ چې تهٔ ليونی يې؟ بيا ما ورته وويل نه. مصنف رحمه الله وايي : مونږ ته احمد بن الحارث له علي بن زيد څخه روايت کړی دی وايي : يوهٔ سړي په زوره عمر بن عبد العزيز رحمه الله ته بد رد وويل ترڅو چې دی يې واوري، نو عمر بن عبد العزيز رحمه الله ورته وويل: ستا خوښه ده چې شيطان ما د پاچاهی په زور او قوت ولمسوي ترڅو تا ته هغه ضرر ورسوم چې سبا د قيامت په ورځ راڅخه انتقام واخلې. بيا يې عفوه ورته وکړه.[2]

---

[1] . الحواله المذکورة : ٣١٢ مخ

[2] . د عمر بن عبد العزيز سيرت : ٢٣٥ مخ

**لهٔ الله ﷻ څخه د عمر بن عبد العزيز ويره:** د ابو سريع الشامي څخه روايت دی چې عمر بن عبد العزيز رحمه الله خپل يوهٔ ملګري ته وويل : آيا کومه شپه د فکر او سوچ کولو له امله بې خوبه شوی يې؟ هغه ورته وويل: ای امير المؤمنينه ! په کومه شپه؟ او په کومه برخه کې؟ هغهٔ رحمه الله ورته وويل : (د قبر د ژوند او په قبر کې د هستوګنې او اوسېدلو په هکله، که تا مړی د درېيو شپو څخه وروسته په قبرکې وليد، نو که هر څومره ستا خوړ ملګرى وي ډېر به درته نا آشنا معلومېږي، هغه به تهٔ د قبر د خزندو د ځالې په څېر ووينی چې زوې به پهٔ کې بهېږي، او د سترګو ګاتې به ځينې غورزېږي او بد بويي به يې خپرېږي، او کفن به يې لوند وي، په بد حالت او شکل به پروت وي، سره لهٔ دې چې په دنيا کې به د دهٔ شکل او صورت ډېر ښکلی وي، خوشبويي به يې لګولې وي، او پاکې جامې به يې اغوستې وي). لهٔ دی خبرو څخه ورسته يې يوه سخته کريکه وکړه او بې هوشه شو، فاطمې مزاحم ته وويل : مزاحمه ! خوار شې، دغه سړی له مونږ څخه وباسه په الله تعالى قسم دی چې له کومه وخته دی خليفه شوی زمونږ ژوند تريخ شوی، ای کاشکې چې دی خليفه شوی نهٔ وای. بيا هغه سړی را ووت او فاطمه (د دهٔ مبارک بي بي او د عبد المالک لور) راغله او پهٔ عمر بن عبد العزيز رحمه الله يې اوبهٔ واړولې، چې په هوش کې راشي او ژړل يی. کله چې په هوش کې راغی فاطمه يې د ژړا په حالت کې وليده، ورته يې وويل : فاطمې تهٔ ولې ژاړې؟ نو هغې ورته وويل : ای امير المؤمنين ! تهٔ چې زمونږ تر مخ وغورزې او بې هوشه شې، ما ته ستا مرګ او زمونږ پهٔ مخ کې غورځېدل او ستا له مونږ څخه جدا کېدل را په ياد شول، نو له دې کبله مې وژړل. نو عمر بن عبد العزيز ورته وويل: بس دی ای فاطمې! پوره خبره دې راته وکړه، بيا غورځېدلو ته نېږدې شو، نو فاطمې خپلې سينې ته تکيه کړ، بيا يې ورته وويل: زما مور او پلار دې له تا څخه قربان شي، ای اميرالمؤمنينه ! ستا په برخه کې چې څهٔ پهٔ زړهٔ کې لرو، هغه خبرې درته نهٔ شو کولای، که درته يې وکړو نو په تا داسې حالت راځي. په دې حالت کې وهٔ چې د لمانځه وخت پرې راغی او د دهٔ په مخ يې اوبه واچولې او آواز يې ورته وکړ، الصلاة يا اميرالمؤمنينه! نو په هيبت سره راويښ شو.[1]

[1] . سيرت عمر بن عبدالعزيز: ۲۴۷مخ

**د اسلام نامتو مبارز شخصیت صلاح الدین ایوبي رحمه الله**

د اسلام په تاریخ کې صلاح الدین ایوبي رحمه الله نامتو شخصیت دی، دی د دجلې د سیند د اړدو په لوړه برخه کې د ( نکرت ) په سیمه کی په یوه کُردي کورنۍ کې په یو (۱۱۳۸) زیږدیز کال کې دې نړۍ ته سترګې وغړؤلې. صلاح الدین ایوبي رحمه الله د زیاتو اسلامي تاریخونو په حواله، د اسلام د اصولو زیات منونکی، سپیڅلی ، غښتلی، هوښیار او عادل شخصیت وۀ. د صوفیانو په څېر یې د وړیو کالي اغوستل، د ساده اوبو پرته یې نور شربتونه او رنګ په رنګ څښاک نه څښل. صلاح الدین ایوبي رحمه الله په صلیبي جګړو کې د اسلام لوی فاتح او عادل قومندان او حکمران وۀ چې حتی د دۀ مخالفینو ( غیرمسلمو ) چې په صلیبي جګړو کې یې ګډون درلود؛ د هغۀ د شخصیت، عدل او پېرزونې، میرانې او د ښو اخلاقو ستاینې کړې دي، چې د اروپا په تاریخونو کې یې یادونه په بشپړه توګه بیان شوي دي.

صلاح الدین ایوبي رحمه الله عالم او شریعت پوه سړی وۀ، دی د جنګي مبارزو لپاره مصر ته لاړ او هلته یې هم د خپلې مېړانې او ښۀ تدبیر له اثره د سکندریې والي وټاکل شو. په دغه وخت کې د مصر واکمني د فاطمیانو په لاس کې وه، دۀ په (۱۱۶۷) زیږدیز کال کې د صلیبي جګړو په لړ کې د اروپایي مسحیانو برید ناکامه کړه، کله چې دی د دېرشو کلو شو، د مصر د وزارت مقام ته ورسېد.

د دۀ رحمه الله په دوره کې د فاطمیانو وروستنی پاچا په خپله ماڼۍ کې ناروغ او د مړینې په حالت کې وۀ، صلاح الدین ایوبي د مصر تر نیولو وروسته له خطبو څخه د فاطمي پاچا نوم لرې کړ، او پر ځای یې د عباسي پاچا نوم رسمي کړ. فاطمي پاچا تر مرګه پورې پۀ دې پوه نشو چې د دۀ نوم له خطبو څخه لرې شوی دی. کله چې نوموړی پاچا مړ شو، صلاح الدین ایوبي د ټول مصر د والي په حیث وټاکل شو. هغه وخت چې صلاح الدین ایوبي د فاطمیانو شاهي ماڼۍ ته ننوت، له نارینه و پرته دولسو زرو (۱۲۰۰۰) ښځو هلته ژوند کاوۀ. په یاده ماڼۍ کې سرببره پر دې په زیاته اندازه ګاڼې ، سرۀ زر او د ماڼۍ د سینګار په لوړه کچه توکي په کې وموندل شول، چې د هغې زمانې په هېڅ شاهي ماڼۍ کې یې شتون نۀ درلود. په یو روایت کې راغلي چې صلاح الدین

ايوبي د ځان لپاره د هغو مالونو څخه هېڅ هم وانخستل او ټول يې خپلو لښکريانو ته وبښل.

په (۱۱۷۳) زېږديز کال کې د (۷۰۰) غښتلو سپرو نظاميانو سره د صليبي بريدونو تود مخنيوي لپاره د شام په ولايت (چې د اوسني لبنان، فلسطين، سوريې او اردن څخه عبارت دی) برى وموند. کله چې دی د شام څخه مصر ته بريالی راستون شو نو خپله پاچاهي يې اعلان کړه او په هغه ځای کې يې د فاطميانو پر ځای د ايوبيانو د سلسلې بنسټ کېښود.

شپږ کاله وروسته د هيواد پايتخت لهٔ مصر څخه د شام دمشق ښار ته نقل کړ، دهٔ د بين النهرين (چې په اوسني عراق کې دی) سيمه هم فتحه کړه. صلاح الدين ايوبي ﷀ د خپلې پاچاهۍ په قلمرو کې زيات مسجدونه، روغتونونه او خانقاوی، د اسلامي زده کړې (ښوونې او روزنې) لپاره مدرسې ، پوهنځۍ او نورې ټولنيزې مؤسسې جوړې کړې، ماليات يې لږ، او د دولت چارې يې د عمومي ګټو او مصلحتونو لپاره تنظيم کړې. چې په (۱۱۹۳) زېږديز کال کې يې لهٔ دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې او د خپل ابدي کور په لورې روان شو. ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ﴾.[1]

[1] . پاچاهانو څه کول: ۲۶۰ مخ

**مأخذونه :**


١. الأحكام السلطانية
٢. إزالة الخفاء عن خلافة الخلفاء
٣. اسلام و سوشليزم
٤. إعلاء السنن
٥. بحر المحيط
٦. البداية والنهاية
٧. البناية شرح الهداية
٨. پاچاهانو څۀ كول
٩. تفسير القرطبي
١٠. تفسير أضواء البيان
١١. الجامع الفصولين
١٢. جند الله
١٣. جواهر الفقه
١٤. د عمر بن عبد العزيز سيرت
١٥. الدر المختار
١٦. دستور الإسلام
١٧. روح المعاني
١٨. سراج الملوك
١٩. سنن ابن ماجة
٢٠. شرح المواقف على المواهب اللدنية
٢١. صحيح البخاري
٢٢. صحيح المسلم
٢٣. فتوي امدادية
٢٤. الفقه الإسلامي وأدلته
٢٥. فيض الباري شرح صحيح البخاري
٢٦. كشف الغناء
٢٧. مسند أحمد
٢٨. مصنف ابن أبي شيبة
٢٩. معارف القرآن
٣٠. المعجم الكبير للطبراني
٣١. النبراس
٣٢. نظام الإسلام

## د مؤلف چاپ شوي تصنيفونه

📖 : رفع الحجاب عن وجوه مسائل الغنيمة والهجرة والجهاد (ورسره) تربية السالك وتنجية الهالك

📖 : تحقيق الكلام في نصب الإمام (ورسره) جزل الكلام في عزل الإمام

📖 : سَتر او پرده

📖 : مواد مخدر

📖 : معيار الحق للمسلمين بعد الثمانين (د سياست په ډګر کې وتلی کتاب. د "حرکت انقلاب اسلامي افغانستان" لهٔ مرکزي دفتر څخه يې تر لاسه کولای شئ)

📖 : د ټولټاکنو لنډ بيان (رساله) – د "حرکت ا.ا.ا" لهٔ مرکزي دفتر څخه يې وړيا ترلاسه کړئ، پته يې لاندې ليکل شوې ده.

📖 : په آيتونو او حديثونو کې د شخصي ملکيت درناوی

📍 : kart-e-char /kabul /Afghanistan.

🌐 : www.hiia.af

✉ : political.dept@hiia.af

☎ : ٠٢٠٢٥١١٩٧٦

د کلتوري چارو کمېټه